# كتاب پېژندنه


☜ د كتاب نوم: د عمرې او حج مكمل لارښود

☜ مؤلف: الحاج سيّد نوراللهآغا (مدني)

☜ تصحيح كوونكی: مولوي عبد الحی (عابد)

☜ نظر ثاني: حافظ شيخ محمد آغا (مدني)

☜ دكمپوز چاري: مولوي صديق الله (مشال)

د چاپ كال: ۱۴۴۴هـق

☜ د چاپ شمېر: ۳۳۰۰

☜ د چاپ وار: لومړی

☜ صفحې : (۲۵۸)

☜ خپروونكی: سيد محمود آغا (مدني)

☜ داړيكي شمېره: ۰۰۹۳ ۷۰۰۶۰۳۰۵۴ \ ۰۰۹۲۳۳۳۹۰۵۰۹۵


---



اَللّــــهُمَّ صَــلِّ عَلَى مُــحَمَّدٍ وَّعَلَى اَلِ مُحَمَّدٍ كَمَا صَـلَّيْتَ عَلَى إِبْرَاهِيْمَ وَعَلَى اَلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ

اَللّــــهُمَّ بَارِكْ عَلَى مُــحَمَّدٍ وَّعَلَى اَلِ مُحَمَّدٍ كَمَا بَارَكْتَ عَلَى إِبْرَاهِيْمَ وَعَلَى اَلِ إِبْرَاهِيْمَ إِنَّكَ حَمِيْدٌ مَّجِيْدٌ (بخاري: ٣٣٧٠)

# تقریظ

## شیخ الحدیث حضرت مولانا انوارالحق الحقاني عفي عنه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ جَعَلَ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةَ مِنْ شَعَائِرِ اللّٰهِ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى مَنْ جُعِلَ كَافَّةً لِّلنَّاسِ بَشِيْراً وَنَذِيْراً قَالَ اللّٰهُ تَبَارَکَ وَتَعَالٰى فَمَنْ حَجَّ الْبَيْتَ اَوِ اعْتَمَرَ اَوْ كَمَا قَالَ صَدَقَ اللّٰهُ الْعَظِيْمُ اَمَّا بَعْدُ!

حج او عمره د الله سبحانه و تعالی د عبدیت او محبت یو لویه بې مثاله نمونه ده او په اسلام کې ضروري او لوی مهم عبادت دی، هر مهم عبادت په زده کولو سره تکمیل ته رسیږي، نود داسې لوی عبادت په صحیح طریقه سره د ادا کولو لپاره علمائې کرامو د حج او عمرې د مسائلو په اړه مختلف کتابونه لیکلي دي؛

خو په پښتو ژبه کې مشهور کتاب د الحاج سیّد نور الله آغا صاحب "د عمرې او حج مکمل لارښود" په ټولو کتابونو کې خاص امتیاز لري په دې کتاب کې مؤلف د عمرې او حج مکمل مستند مسائل په ډیر سهل او اسان ډول بیان کړي دي؛



الله جل جلاله دي دمؤلف همدغه سعي په خپل عالي دربار کي مقبول وګرځوي آمين يارب العالمين.

شيخ الحديث حضرت مولاناانوار الحق الحقاني عفي عنه

مهتمم: جامعة دارالعلوم حقانية اکوړه خټک ضلع نوشهره صوبه خيبر پختونخواه پاکستان

نائب رئيس: وفاق المدارس العربية باکستان

PH : ۰۹۲۳۶۳۰۴۳۵

Fax : ۰۹۲۳۶۳۰۹۲۲

۱۲ / شعبان المعظم / ۱۴۴۳ هق



# تقریظ

## استاذ الحدیث مولوي محمد حسن جان (مدني) عفا الله عنه

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِیْ جَعَلَ الْبَیْتَ مَثَابَةً لِلنَّاسِ وَأَمْناً وَالصَّلَوٰةُ وَالسَّلَامُ عَلَی مَنْ جُعِلَ رَحْمَةً لِّلْعَالَمِیْنَ وَإِمَاماً ___ و **بعد**

درنواو معززو وروڼو!

حج او عمره دمیني، محبت او دالله سبحانه وتعالی دعبدیت دښکاره کېدو یوه بې مثاله ننداره ده.

کله چي حاجي صاحب خپل اهل،اولاد ،دوستان،عزیزان،هیواد ،کاروبار

اوهر څه پرېږدي،په ډېره عاجزانه ډول،په مینه ناک زړه،په نمناکو سترګو دمحبوب امر پرځای کوي،په شوق شوق دعاجزي په جامه کي دخپل رب تبارک وتعالی دغفران او بخښني لپاره یوې اوبلي خواته په لپولپو لاسونه

زاری کوي،دابراهیم خلیل الرحمن اواسمعیل علیه السلام دلاسونو یادوګاراو دخپل محبوب او خوږ نبي دټاټوبي او دیار زیارت کوي.

تر هر څه مهم داچي حج او عمره په اسلام کي مهم او ضروري عبادت دی

او هر مهم عبادت و زده کړي ته اړتیا لري، نو بناءً ددغه ستر عبادت زده کول یو لازمي کار دی.

په پښتو ژبه کې دحج او عمرې اړوند ډېر کتابونه لیکل سویدي خو دحضرت ښاغلي الحاج سید نورالله آغا صاحب حفظه الله د " عمرې او حج مکمل لارښود " کتاب زما له آنده په ټولو کې خاص امتیاز لري، چې مسائل یې دحنفي معتمدو فتاوی څخه را چڼ سویدي، هر اړخ یې په ښه ترتیب سویدی، نو دآغا صاحب دغه خدمت دټولو پښتنوورونوسره نه خلا صېدونکی احسان دی او دټولو محترمو حاجیانو اومعتمرینو څخه جدي غوښتنه کیږي چې همدغه کتاب ددغه مبارک سفر پر مهال دځان سره ولري.

و مؤلف ته یې دعاء کوم چې الله سبحانه وتعالی یې دغه عرق ریزي او محنت قبول کړي، دده او دده د کورنۍ لپاره ذریعه د دخول جنت وګرځوي!

**استاذ الحدیث مولوي محمد حسن "مدني" عفا الله عنه**

**خادم بجامعة العلوم الاسلامیة العثمانیة**

**دوهمه ناحیه، قندهار، افغانستان ۸ / ربیع الثاني / ۱۴۴۳ هق**



# تقريظ

## فضيلة الشيخ الحاج مولوي محمد رسول صاحب حفظه الله

اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ نَحْمَدُهُ وَنُصَلِّيْ وَنُسَلِّمُ عَلَى رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ وَعَلَى آلِهِ وَأَصْحَابِهِ أَجْمَعِيْنَ

أمابعد!

ډېر حمد او ثناء دي وي و مهربانه الله جل جلاله لره چي موږ ته الله جل جلاله دومره توفيق راکړی چي دا مدلل د "عمرې او حج مکمل لارښود" سر تر پایه په پوره غور په ډېر دقیق نظر او سالم عقل سره مطالعه کړی او د عمرې او حج په مسائلو کي یې ډېره ښه توضیح او تشریح کړې ده د الحاج سیّدنورالله آغا په اجازه موتولي هغه نیمګړتیاوي په حسب قدرت صحیح او پوره کړې، ځکه صحیح او سالم خو صرف قرآن کریم دی، نو موږ د خپلو حنفي مذهبو عمره یانواو حج کونکو وروڼو ته دا مشوره ورکوو چي دغه د عمرې او حج مکمل لارښود دي د يو ښه عالم انډیوال په توګه له ځان سره حرمينو شريفينو ته

یو سي ډېر ښه ګټور دی او ښه تحفه ده.



دجامعة اسلامية اشرفية دتاليف اوژباړي دڅانګي دطرفه څخه وكتل سو

نسال الله العلي القيم أَن ينفع بها المسلمين و أَن يجعل عمله هذاخالصا لوجهه الكريم وأَن يجعله في ميزان حسناته إنه نعم المولى و نعم النصير آمين !

٢٥ / ذو القعدة / ١۴۴٢ هـق

جامعة اسلامية اشرفية ، قندهار ، افغانستان

## تقریظ

## فضيلة الشيخ مولوي عبدالهادي (حماد) حفظه الله

اَلْحَمْدُ لِاَهْلِهِ وَالصَّلوةُ عَلَى أَهْلِهَا

درنو لوستونکو! معلومه خبره ده چې بيت الله الحرام دالله جل جلاله هغه بيته ده چې پرمخ دمځکي الله جل جلاله پرټولو ودانيو فضيلت ورکړی دئ او هرمسلمان يې دليدلو شوق لري بناء د نړۍ دکونج کونج څخه مسلمانان د همدې بيتې دليدلو لپاره دحج او عمرې د اداينې لپاره ورځي خصوصاً په دې ورستيوکي دافغانستان دخلکو لپاره دعمرې او حج داداء لپاره فرصتونه زيات سوي دي، الله تعالی جل جلاله دي دمسلمانانو دغه شوق نور هم زيات کړي او ددې شوق دپوره کېدو لپاره دي نور هم لاري اسانه کړي.

داچې دافغانستان دپښتوژبي مسلمانان عمرې او حج ته ځي هيله يې همدا وي چې عمره او حج په صحيح طريقه اداء کړي، دهمدې مقصد لپاره متدين ورور الحاج سيد نورالله آغا (مدني) حفظه الله په پښتو ژبه دعمرې او حج د اداينې صحيح طريقه او



اړوند احکام په یوه رساله کي را جمع کړي دي دغه رساله موږ څو ځایه وکتله دحنفي مذهب مطابق دعمرې او حج اړوند احکام پکښي جمع وه ځکه نود تائید تر څنګ هیله لرو چي الله جل جلا له دقبولیت مقام ورته ورکړي تر څو مسلمانان صحیح استفاده ځني وکړي الله جل جلا له دي دمؤلف سعي قبوله کړي.

په درنښت ستاسو ورور: مولوي عبدالهادي (حماد) حفظه الله

٦ / ربیع الاول / ١۴۴٣ هق

جامعة دارالعلوم حمادیة ، قندهار، افغانستان

# فهرست

بسم الله الرحمن الرحيم

نَحْمَدُهُ وَ نُصَلِّيْ عَلىٰ رَسُولِهِ الْكَرِيْمِ.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

**كُنْ عَالِماً أَوْ مُتَعَلِّمًا أَوْ مُسْتَمِعًا أَوْمُحِبًّا وَ لَا تَكُنِ الْخَامِسَ فَتَهْلِكَ**[١].

ژباړه: رسول الله صلى الله عليه فرمايي: چي عالم جوړ سه،يا زده کوونکی،يا اورېدونکی او يا د همدوی سره محبت کوونکی، پنځم مه جوړېږه چي بيا به ته هلاک سې.

محترمو مسلمانانو وروڼو کوم انسان چي دعمرې او حج کولو قصد او اراده لري نو دهغه انسان لپاره دا خبره لازم ده چي بايد عمره او حج ښه ايزده کړي او دعمرې په احکامو اومسائلو باندي ښه ځان خبر کړي او ښه ځان مطمئن کړي، د هغه څخه وروسته دي دعمرې او حج سفر شروع کړي او کوښښ دي وکړي چي په دې مبارک سفر کي دي د داسي شيانو څخه ځان وساتي چي دهغه په کولو سره عمرې او حج ته نقص رسيږي.

---

(١) رواه الطبراني في الثلاثة والبزار ورجاله موثقون: قال الهيثمي في مجمع الزوائد: ج٣ ص ٢٦٥

# د عمرې شرعي حيثيت او فضيلت

عمره په لغت کښې زيارت کولو ته وايي او د شرعي په اصطلاح کښې دميقات يا حل څخه احرام تړل،پر بيت الله باندې طواف کول او دصفاء او مروا تر مينځ تګ را تګ کولو ته عمره وايي. (١)

کوم انسان چې د عمرې کولو توان او طاقت ولري، پر هغه انسان باندي په ټول عمر کښې يو ځل عمره کول سنت مؤکد ده او د يوې عمرې څخه زياتي عمرې کول مستحب دي دعمرې په فضيلت او ښه والي کي د رسول الله ﷺ څخه ډېر حديثونه را نقل سوي دي البته دهغه حديثو څخه يو څو حديثونه درته دمتن او ژباړې سره بيانوو.

**(١) مَنْ خَرَجَ حَاجًّا أَوْ مُعْتَمِرًا أَوْ غَازِيًا ثُمَّ مَاتَ فِيْ طَرِيْقِهِ كَتَبَ اللّٰهُ لَهُ أَوْ جْرَ الْغَازِيْ وَ الْحَاجِّ وَ الْمُعْتَمِرِ.** (٢)

ژباړه: څوك چې د كور څخه د حج، عمرې يا د غزا په قصد ووځي، او

---

(١) منهاج السنن : ص١٤٢

(٢) رواه بيهقي:

په لاره کښې مړ سي الله تعالی د غازي او د حاجي اوعمره کوونکي ثواب ورکوي.

(۲) حدیث: **تَابِعُوْا بَیْنَ الْحَجِّ وَ الْعُمْرَةِ فَإِنَّهُمَا یَنْفِیَانِ الْفَقْرَ وَ الذُّنُوْبَ كَمَا یَنْفِي الْكِیرُ خُبْثَ الْحَدِیْدِ وَ الذَّهَبِ وَ الفِضَّةِ وَ لَیْسَ لِلْحَجَّةِ الْمَبْرُوْرَةِ ثَوَابٌ إِلَّا الْجَنَّةَ**. (۱)

ژباړه: حج او عمره پرله پسې اداء کړئ ځکه دغه دواړه فقر او ګناهونه داسې له منځه وړي لکه د اور بټۍ چې د اوسپنې، سرو او سپینو زرو کچرې له منځه وړي او د قبول سوي حج ثواب بې له جنت څخه بل شی نه دی.

په دې حدیث شریف کې دحج او عمرې دواړو فضیلتونه ذکر سویدي یو فضیلت یې دادی چې حج او عمره چې څوک اداء کړي نو هغه به الله تعالی جل جلا له- د فقر او مسکنت څخه وساتي او په حدیث شریف کې ټولو مسلمانانو ته ډاډ او اطمنان ورکول سویدی چې د فقر او مسکنت څخه مه بېرېږئ الله تعالی جل جلا له- مو لوږه او فقر له منځه څخه وړي.

(۱) رواه ترمذي :عن عبد الله بن مسعود و نسائي:

(۳) حديث: **اَلْعُمْرَةُ إِلَى الْعُمْرَةِ كَفَّارَةٌ لِمَا بَيْنِهِمَا وَ الْحَجُّ الْمَبْرُوْرُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الْجَنَّةُ.** (۱)

ژباړه: يوه عمره تر بلي عمرې پوري د دوی دواړو تر منځ ګناهونه له منځه وړي او د قبول سوي حج ثواب بېله جنته بل څه نه دی.

(۴) **وَفْدُ اللهِ ثَلٰثَةٌ، اَلْغَازِيْ، وَ الْحَاجُّ، وَ الْمُعْتَمِرُ.** (۲)

ژباړه: دالله تعالی جل جلا له مېلمانه درې نفره دي: غازي، حاجي او عمره کوونکی.

(۵) **مَا مِنْ مُحْرِمٍ يُضَحِّيْ لِلّٰهِ يَوْمَهُ يُلَبِّيْ حَتَّي تَغِيْبَ الشَّمْسُ اِلَّا غَابَتْ بِذُنُوْبِهِ فَعَادَ كَمَا وَلَدَتْهُ اُمُهُ.** (۳)

ژباړه: په کومه ورځ چي محرم احرام وتړي د دغي ورځي لمر به پر ده باندي په داسي حال کي لوېږي چي پر ده به ګناه نه وي او د ګناهونو څخه به داسي پاك سي لکه څرنګه چي د مور څخه پيدا سوی وي.

---

(۱) رواه البخاري، مسلم، النسائي.

(۲) رواه النسائي.

(۳) رواه أحمد و ابن ماجه و اللفظ له الترغيب و الترهيب: ج۲ ص۱۲۰ .

(۲) **اَلْحُجَّاجُ وَالْعُمَّارُ وَفْدُ اللّٰهِ اِنْ دَعَوْهُ اَجَابَهُمْ وَ اِنِ اسْتَغْفَرُوْهُ غَفَرَ لَهُمْ**.(۱)

همدارنګه په حدیث شریف کښې دا هم فرمایل سوي دي:

ژباړه: چې حج او عمره کوونکي د الله تعالی جل جلاله مېلمانه دي دوی که د الله پاک څخه کومه دعاء وغواړي الله پاک یې دعاء قبلوي او که د خطاء بخښنه ځني وغواړي الله تعالی بخښنه ورته کوي.

خو په روژه کښې د اعمالو ثواب اویا (۷۰) چنده زیاتیږي، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د روژې عمره د پوره حج سره برابره ده. (۲)

په یو بل روایت کښې راځي: چې رسول الله صلی الله علیه و سلم وفرمایل: په روژه کښې دعمرې ثواب د هغه حج سره برابر دی چې زما سره یې کړی وي. (۳)

---

(۱) رواه النسائي و ابن ماجة: شرح اللباب: ص ۳۱ / الترغیب والترهیب: ج ۲ ص ۱۰۸.

(۲) عمرة في رمضان تعدل حجة وفي رواية حجة معي رواه البخاري: (۱۸۶۳)غنیة الناسک: ص۱۹۹ / فتح القدیر: ج ۳ ص۶۱ / الشامي: ج ۲ ص ۱۶۴

(۳) فعمرة في رمضان تقضي حجة او حجة معي رواه البخاري: ج۱ ص ۲۳۹ / رواه مسلم:ج ۱ ص۳۰۹

دا چي په حج او عمره کښي دنياوي او اخروي ګټې دي ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمايي:

(٧) **تَابِعُوْا بَيْنَ الْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ**(١)

ژباړه: تاسو کله حج کله عمره يو په بل پسې اداء کوئ.

په شريعت کښي چي څوک د عمرې طاقت ولري د هغه لپاره سنت ده (٢)

د احنافو په نزد عمره سنت مؤکده ده،فرض نه ده ځکه چي د محمد رسول ﷺ ارشاد دی: «اَلْحَجُّ مَكْتُوْبٌ وَالْعُمْرَةُ تَتَطُّوْعٌ» يعني حج فرض دی او عمره د خپلي خوښي نفلي عبادت دی.

او د هر عبادت د قبوليت لپاره درې شيان ضروري دي:

اول – ايمان لرل.

دوهم – د اسلام په طريقه عمل کول.

دريم – اخلاص لرل.

---

(١) اخرجه الترمذي: (٨١٠) والنسائي :(٢٦٣١) واللفظ له ،وأحمد :(٣٦٦٩)

(٢) العمرة عندنا ليست بواجبة...الشامي: ج٢ ص١٦٤ / الهندية ج ١ ص ٢٣٧ / الخانية على هامش الهنديه: ج ١ ص٣١٠

او هر نفلي عبادت په شروع کولو سره واجبيږي.

پر کوم چا چي حج فرض وي د هغه لپاره حج کول ضروري دی په عمره کولوسره فرض نه اداء کيږي. (١)

او څوک چي د حج د اداء کولو توان ولري او حج اداء نه کړي مړ سي د دا ډول کس مرګ رسول الله صلی الله عليه وسلم په حديث شريف کي د يهوديت او نصرانيت د مرګ سره برابر مرګ بللی دی. (٢)

او کوم څوک چي دحج توان او طاقت لري او حج ونه کړي الله تبارک وتعالی په قرآن کريم کي دهغوی حج نه کول مبالغة کفر بللی دی. (٣)

---

(١) و هکذا أحسن الفتاوی: ج ۴ ص ١٥٩.

(٢) قال رسول الله ﷺ: مَنْ مَلَکَ زَادً وَرَا حِلَةً تُبَلِّغُهُ إلَي بَيْتِ اللهِ وَلَمْ يَحُجّ فَلا عَلَيْهِ أنْ يّمُوْتَ يَهُوْدِياً أوْ نَصْرَانِياً وَ ذَلِکَ إن اللهَ يَقُوْلَ فِي كِتَابِهِ : وَللهِ عَلَي النّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ إلِيْهِ سَبِيْلًا

هذا الحديث رواه الترمذي: رقم ٨١٢ / والبزار رقم ٨٦١.

(٣) وَمَنْ كَفَرَ فَاِنّ اللهَ غَنِيٌ عَنِ الْعَالَمِيْنَ (سورة آل عمران) ٩٧.

لکه څنګه چې الحمدلله د عمره کوونکو عدد یا شمېر ډېرېږي نو پکار ده چې عمره کوونکي د عمرې د سفر د پیل څخه وړاندې باید په مفصل ډول پر شرعي طریقه او د نبوي احادیثو په رڼا کښې په مناسکو ځانونه ښه خبر او عمره زده کړي، ځکه علم تر عمل مخکې دی، له خپله ځانه به عبادت نه جوړه وي، الله جل جلاله د عبادت د ښوونې لپاره کتابونه او رسولان رالېږلي دي، په کوم عبادت کښې چې اخلاص او د الله تعالی رضاء نه وي، په هغه کښې ثواب نسته، نو باید په پاك زړه، پاکه نفقه د بیت الله شریفې پر لور ور روان سي او د علماوو څخه پوښتني وکړي او په حرمینو کښې خپل طلایي وخت په عبادت تېر کړي، تقوا مختاره کړي، د الله جل جلاله ذکر وکړي، پر رسول الله صلی الله علیه وسلم درود شریف ووایي او بې ځایه خبرې، غیبتونه، شخړې، په بازارو کې بې ځایه وخت تېرول، عکسونه اخستل، او نامحرمو ښځو ته کتل دا ټول ناجائز دي نو باید ددې شیانو څخه توبه وکاږي، د ګناهو د کارو څخه د بیا نه کولو عزم وکړي، چې په دې مقدس سفر کې لا هم د ګناهونو څخه ځان نه وساتي نو څه مهال به توبه کاږي، دا خبره دې واضحه وي،چې په حرمینو کې اوس تر نارینوو ښځې ډېرې عمرې ته راځي نو باید چې

څوک مالي طاقت ولري د هغه لپاره دا ښه خبره ده چې هر کښر ځوان خپله د ژوند ملګرې د ځان سره راولي نو عمره به يې کامله سي.

## عمره

**۱-د ميقات څخه د عمرې په نيت احرام تړل،تلبيه ويل** (شرط)

**۲-پر بيت الله شريفه دعمرې طواف کول** (رکن)

**۳-د طواف څخه وروسته دوه رکعته لمونځ کول** (واجب)

**۴-دطواف څخه وروسته د صفا او مروا ترمينځ سعي کول** (واجب)

**۵ -د سر وروېښتان خرېيل،يا کوچني کول** (واجب)

**۶ - ددې ټولو شيانو دکولو څخه وروسته بيا نو داحرام څخه وځي.**

## د عمرې فرضونه

په عمره کښې دوه فرضونه دي: اول ـ د ميقات يا حل څخه احرام تړل. دوهم ـ بيت الله شريفي ته په رسېدلو سره پر بيت الله طواف کول.

## داحرام فرضونه

د احرام لپاره تلبيه ويل او نيت يعني قصد کول په زړه کي دواړه فرض دي خو د طواف لپاره صرف نيت فرض دی په زړه سره خو که په ژبه سره وويل سي افضل دی. (۱)

## د عمرې واجبات

په عمره کي دوه افعال واجب دي:

(۱) د طواف څخه وروسته د صفاء او مرواسعي کول (۲) او د سعي څخه وروسته د سر وريښتان خرېيل يا کمول.

---

(۱) و هي إحرام و طواف و سعي و حلق أو تقصير فالا حرام شرط و معظم الطواف رکن و غير هما واجب هو المختار، الشامي: ج ۲ ص۱۶۶ / غنية الناسک: ص ۱۹۶.

# د عمرې سنت او واجب شرطونه

د عمرې سنت او واجب شرطونه د حج په څېر دي او د احرام احكام يې هم د حج د احرام په مثل دي، كوم شيان چې هلته مكروه مسنون او مباح دي هغه شيان دلته هم داسې دي، خو په دغو ځينو شيانو كې د حج او عمرې تر منځ فرق سته مثلاً:

(۱) عمره فرض نه ده البته حج فرض دئ (۲) په عمره كې د عرفات درېدل دمزدلفې درېدل، دشيطانانو ويشتل او دوه لمونځونه پر يوه ځاى كول

او خطبه ويل يو هم نسته البته په حج كې داټول سته. (۳) په عمره كې طواف قدوم نسته او په حج كې سته (۴)په عمره كې طواف صدرواجب نه دى او په حج كې واجب دى (۵) د حج لپاره ځانګړى وخت معلوم دى خو عمره په ټول كال كې كېدلا ى سي د شپې او د ورځې هره مياشت او هره ورځ لكن په دغو پنځو ورځو كې د عمرې لپاره نوى احرام تړل مكروه تحريمي دى لكه د عرفات په ورځ عمره كول مكروه تحريمي عمل دى او همدارنګه د اختر په ورځ او درې ورځې وروسته يعني ۹ د ذوالحجة

څخه تر ۱۳ ذوالحجة پورې مکروه تحريمي ده او عمره د قارن حاجي لپاره د عرفات په ورځ مکروه تحريمي نه ده. (۱)

## دعمرې ثواب

دوې عمرې د یوه حج ثواب لري، او یوه عمره د اوو ۷ طوافو ثواب لري او عمره تر طواف افضل ده او عمره کوچنی حج بلل کیږي، ځکه دا عمره یو مستقل عبادت دی، ډیري عمرې کول ښه کار دی، که څه هم په یوه ورځ کې وي او د عمرو د تعداد تعیین یې نه دی کړی، هر څومره عمرې چې په ورځ کې کولای سي صحیح دي، او کوم چا چې دحج په میاشتو کې عمرې ګناه بللي دي دغه خبره یې د قرآن او سنت څخه مخالفه ده. (۲)

نو محترمو ورونو! خپلي عمرې کوئ، اختیار لری که یې د ځان لپاره کوئ او که یې د بل لپاره کوئ، هغه که مړ وي او که ژوندی وي، که یې اجازه وي او که نه وي، که غني وي که مسکین وي، قریب وي او که نه.

---

(۱) تصح العمرة في كل سنة و يكره تحريما إنشاء الاحرام للعمرة يوم عرفة وأربعة أيام بعده، فقه الحنفي في ثوبه الجديد: ج۱ص ۴۶۷ / الموسوعة الفقهية:ج۳ص ۳۱۹ / فتح القدير: ج ۳ ص۶۱. (۲) قاضي خان: ج ۱ ص ۳۰۱ / إرشاد الساري :ص ۲۸۹ / فقه الاسلامي: ج ۳ ص ۸۷ / العلاج في أمراض الحجاج: ص ۱۹۲.

وي، باید د ټولو آنبیاوو علیهم الصلوة والسلام پر نامه او د ټول اُمت پر نامه عمره وکړئ، د ټولو په شمار تاسو ته ثواب رسیږي، ان شاء الله

که څوک د حج یا عمرې په سفر ځي دا واجب ده چي خالص د الله جل جلاله د رضاء لپاره به یې کوي، ځکه الله جل جلا له یواځي هغه عمل قبلوي چي دده د رضاء لپاره وي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: چي د اعمالو ثواب په نیت سره معتبر دی، او دا ضروري ده چي د عمرې تر سفر مخکي هغه مسئلې زده کړي چي دده ورته ضرورت وي،مثلاً سفریانه لمونځ په طیاره کي په حرمینو کي، د جنازې لمونځ، سجده سهوه دامام سره په لمانځه کي، سجده تلاوت د امام سره په لمانځه کي.

اوعمره کوونکی باید دځان سره د عمرې په احکامو کي یو ښه جامع لارښود کتاب یوسي، او د یو ښه پرهېزګاره ملګري طلب وکړي، که عالم وي افضل دی، او د خپل کور د قریبانو او دوستانو، همسایه ګانو څخه به رخصت واخلي، معافي او دعاء به ور څخه وغواړي، تر هغه وروسته به روان سي. (۱)

(۱) و یجب أولا علی من أراد الحج و العمرة إخلاصه لله تعالی فانه سبحانه لا یقبل إلا الخالص لوجهه الکریم، والاخلاص شرط في جمیع العبادات قال صلی الله علیه وسلم: " انما الاعمال بالنیات " مجامع المناسک: ص ۳ الی ص ۲۵.

## د عمرې کولو طریقه

د غسل او صفایي کولو وروسته دمیقات یا حل څخه احرام تړل، د احرام څخه وروسته دوه رکعته نفل لمونځ کول. بیا و میقات ته تر رسېدلو مخکښې د عمرې نیت کول، تلبیه ویل، د مسجد حرام پر لوري تلل او په لاره کښې تر کعبې شریفې پورې تلبیه ویل او کعبې شریفې ته تر رسېدلو وروسته طواف کول. وروسته بیا د طواف دوه رکعته لمونځ کول،سعي د صفا د غونډۍ څخه پیلول، د سعي وروسته د سر وریښتان خرییل یا کمول، او د احرام څخه ځان خلاصول.

## دمیقات تعریف او مسائل

میقات هغه ځای ته ویل کیږي چې پر خلګو باندې دا لازمه وي چې د هغه ځای څخه احرام وتړي. [1]

---

(۱) التاتارخانیة: ج ۲ ص۱۷۴ / المحیط البرهاني: ج ۳ ص ۴۱۲.

# میقاتونه

(۱) د مدینې منورې د خلکو او د هغه طرف څخه د راتلونکو خلکو لپاره ذوالحلیفة میقات دی، چې اوس د (ابیار علی) په نامه یادیږي، او د شام دخلکو او د هغه طرف څخه د راتلونکو خلکو لپاره الجحفة میقات دی.[۱]

(۲) داهل نجد دخلکو لپاره قرن منازل دی چې اوس د (السیل) په نامه سره مشهور دی.

(۳) دیمن دخلکو لپاره یلملم میقات دی.

(۴) دعراق دخلکو لپاره او د مشرق دطرف څخه د راتلونکو خلکو لپاره میقات تهامه، هند، او ذات العرق دی.

---

(۱) الموسوعة الفقهیة: ج ۳۰ ص ۳۱۹ / التاتار خانیة: ج ۳ ص ۵۴۹ / المحیط البرهاني: ج ۳ ص ۴۱۲.

(۱) تر میقات دباندي خلګ که اول وار مکې مکرمې ته نه ځي بلکي مديني منورې ته ځي نو دغه خلګ که بې له احرامه تر میقات تېر سي یعني جدة ته ولاړ سي دا روا دي شی نه پر لا زمیږي. (۱)

(۲) آفاقي یعني هغه څوک چي له مواقیتو څخه دباندي استوګن وي، په ټوله نړۍ کي په اصطلاح کي د آفاقي په نوم یادیږي، او دغو خلکو ته افاقیان ویل کیږي، دوی به د حج او عمرې احرام له میقات څخه یا تر میقات مخکي تړي، بې له احرامه تر میقات تېرېدل حرام دي. (۲)

(۳) هغه څوک چي په مکه مکرمه یعني د حرم په حدودو کي وي که د دغه ځای وي او که د بل ځای څخه راغلی وي هغه به د حج احرام د حرم څخه تړي او د عمرې احرام به د حِل څخه تړي، لکه: مسجد عائشة رضي الله عنها یعني (تنعیم او جعرانه) یا دحل نور ځایونه،خو تنعیم افضل دی. (۳)

---

(۱) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۸۷ / البدائع: ج ۲ ص۳۷۵.

(۲) البدائع: ج ۲ ص ۳۷۱ / الهداية مع الفتح: ج ۲ ص ۳۳۴.

(۳) البدائع: ج۲ ص ۳۷۶ / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۱ / الحاوي القدسي: ج ۱ ص ۳۲۴

**(۴) كوم سړى چي په حرم كي دى، كه د عمرې احرام په حرم كي وتړي دم پرلا زم دى، خو كه د حجر اسود تر استلام مخكي حل ته يعني تنعيم ته ولاړ سي او د هغه ځاى څخه تلبيه ووايي يوازي په دغه صورت كي د دم څخه خلاصيږي.** (۱)

**(۵) كوم څوک چي په مكه معظمه كښي وي هغه دي د عمرې احرام تنعيم، جعرانة يا د حرم د بل حد څخه وتړي.**

**(۲) كه يو څوك د ميقات څخه بې له احرامه تېر سي، نو پر ده باندي لا زمه ده چي دغه ميقات يا بل ميقات ته ور وګرځي، او د ميقات څخه تلبيه ووايي، او كه نه ور وګرځېدى او يا يې پر ميقات باندي تلبيه نه وويل نو دم پر لا زميږي.**(۲)

(۱) و اذا أراد العمرة الحل فاذا أحرم بها من الحرم لزمه دم البحر ج ۲ ص۵۶۰ / المبسوط للسرخسي ج ۴ ص ۱۹۱ / الزيلعي ج۲ ص ۳۹۹ .

(۲) اللباب: ص ۹۴ / غنية الناسك: ص ۶۰ / و إن لم يعد فعليه دم فإن رجع إ لى الميقات ولبىٰ إن رجع قبل أن يحرم فلا شئ عليه بالا تفاق / المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۸۹ / الميحط البرهاني: ج ۳ ص ۴۱۴ / البحر: ج ۳ ص ۸۵ / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۱ / غنية الناسک: ص۶۰.

(۷) د مدينې منورې خلك كه تر ذوالحليفې تېر سي او د جحفې د ميقات څخه احرام وتړي شي نه پر لا زميږي خو د اول ميقات څخه احرام تړل افضل دي. (۱)

(۸) كه څوك پر يوه ميقات باندي تيريږي او وروسته بيا د بل ميقات پر برابر باندي احرام وتړي دغه د دوهم ميقات پر برابر احرام نه دى معتبر او دم پر لا زميږي .(۲)

(۹) هغه څوك چي تر ميقات دباندي وي، د حج او عمرې احرام به د ميقات څخه او يا دميقات څخه مخكښې تړي او بې له احرامه تر ميقات تېرېدل حرام دي. (۳)

(۱۰) كه يو څوك دكعبې شريفي څخه جعرانې يا حديبيې يا تنعيم يا عرفات او يادحل بل ځاى ته دليدلو لپاره ولاړ سي،نو بيرته بې له احرامه كعبې شريفي ته راتلاى سي اوشى نه پرلازميږي البته په دې شرط چي تر ميقات تېر سوى نه وي. (٤)

---

(۱) غنية الناسک: ص ۵۳ الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۴۸ / إرشاد الساری: ص ۹۱.

(۲) الشامي: ج ۲ ص ۱۶۷ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۲۹۶۰ / غنية الناسک:ص۵۳.

(۳) الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۴۷ / البدائع: ج۲ ص ۳۷۱ / الهداية مع الفتح: ج ۲ ص ۳۳۴.

(٤) المكي إذا خرج إلى الحل لحاجة له أن يدخل مكة بغير إحرام بشرط أن لايكون جاوز ميقات الافاقي. غنية الناسک: ص ٦٤ / البدائع: ج ص٣٧٦ / المبسوط للسرخسي: ج٤ ص ١٨٧

# د احرام په نیت دوه رکعته لمونځ کول

د احرام په نیت د دوو رکعتو په لمانځه کښې باید دالحمدلله څخه وروسته په اول رکعت کښې« قل یا أیها الکافرون» او په دوهم رکعت کښې دالحمدلله څخه وروسته باید « قل هوالله أحد» وویل سي. (۱)

د احرام دوه رکعته لمونځ مستحب دی. (۲)

د احرام دوه رکعته لمونځ به په مکروه وخت کي نه کوي، بلکي پرېږدي به يې. (۳)

که یو څوک فرض لمونځ وکړي او بیا احرام وتړي بیا د احرام دوه رکعته کول نه غواړي دغه فرض لمونځ کفایت کوي. (٤)

---

(۱) التاتارخانية: ج ۲ ص ۱۵٤/ الهندية: ج ۱ ص ۲۲۳ / المحيط البرهاني: ج ۳ ص ۱٤

(۲) الدر المختار: ج ۲ ص۱۷۱ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۲۹٦۹.

(۳) ولا يصليها في الوقت المكروه الدر المختار: ج ۲ ص۱۷۱ / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۳ / البحر الرائق ج۲ ص ۵٦۳.

(٤) الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۷۳ / فتح القدير: ج ۲ ص ۳٤۰ / التبيين: ج ۲ ص ۲۵۲.

د احرام دوه رکعته لمونځ به په پټ سر کوي، ځکه په دغه وخت کي لا دی محرم نه دی او د غیر محرم لپاره په لڅ سر لمونځ کول مکروه دی چي د عاجزۍ په وجه نه وي او رخچینه (خولۍ) پر سرول سنت ده. (۱)

د احرام د دوو رکعتونفلوڅخه وروسته دي دعمرې نیت وکړي.

## د عمرې نیت او تلبیه

د احرام تړلو په وخت کي دي په زړه کي د عمرې یا حج نیت او د احرام قصد وکړي، او چي احرام یې وتړی بیا دي نیت په ژبه وکړي، نیت یې دا دی:

**( اَللّٰهُمَّ إِنِيِّْ أُرِيْدُ الْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهَا لِيْ وَ تَقَبَّلْهَا مِنِّيْ).**

ژباړه: اې الله! زه اراده لرم د عمرې ته یې راته اسانه کړې او ته یې را څخه قبوله کړې.

---

(۱) مرقات: ج ۸ ص ۲۱۵ / الهندیة: ج ۱ ص ۱۰۶ / الشامي: ج۱ ص ۴۷۴.

د همدې کلماتو څخه وروسته درې ځلي دي« لبیک» یعني تلبیه ووایي محرم چي هرواره تلبیه شروع کړي درې واره پر له پسې ویل یې مستحب دي، ددغه تلبیې په مابین کي به خبري نه کوي. [۱]

او تلبیه به نارینه درې ځلي په لوړ آواز او ښځینه به درې ځلي په ټیټ آواز سره وایي. [۲]

تر تلبیې وروسته درود شریف کرار ویل مستحب دی. [۳]

د تلبیې هغه الفاظ چي دټولو فقهاوو پر اتفاق دی هغه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د تلبیې دغه الفاظ دي:

---

(۱) و يستحب أن يكرها كل ما أخذفيها ثلاث مرات وياتي بها على الولاء ولا يقطعها بكلام، البحر الرائق: ج ۲ ص ۵۷۰ / اعلاء السنن: ج۷ ص ۲۹۷۰.

(۲) ورفع الصوت بها سنة إلانه لايجهد نفسه كما يفعله العوام. البحر الرائق: ج ۲ ص ۵۷۰ / الشامي: ج ۲ ص ۱۷۸ / فتح القدير: ج ۲ ص ۳۵۱.

(۳) و يستحب أن يصلي على النبي المعلم للخير صلى الله عليه وسلم إذا فرغ من التلبية و يخفض صوته بذلك، فتح القدير: ج ۲ ص۳۵۲ / الهندية: ج۱ ص ۲۲۳ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۲۹۷۰.

## تلبیه

**لَبَّيْكَ اَللّٰهُمَّ لَبَّيْكَ، لَبَّيكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ لَبَّيْكَ، إِنَّ الْحَمْدَ وَ النِّعْمَةَ لَكَ وَ الْمُلْكَ لَا شَرِيْكَ لَكَ.**

ژباړه: په خدمت درته ولاړ یم یا الله، په خدمت درته ولاړ یم، په خدمت درته ولاړ یم، هیڅ شریک نسته تا لره، په خدمت درته ولاړ یم، په تحقیق سره ټوله ثناء او صفت او نعمتونه تا لره دي او همدا ډول پادشاهي تا لره ده او هیڅ شریک نسته تا لره.(۱)

دتلبیې څخه وروسته چي کومه دعاء غواړي هغه دي وکړي لیکن دتلبیې څخه وروسته همدغه دعاء مستحب ده.

**اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أَسْأَلُکَ رِضَاکَ وَ الْجَنَّةَ وَ نَعُوْذُ بِکَ مِنْ غَضَبِکَ وَ النَّارِ.**

ژباړه: اي الله! زه ستا څخه ستا رضاء او د جنت غوښتنه کوم او ستا د غصې او د جهنم څخه پناه غواړم، د نیت او تلبیې څخه وروسته احرام

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج۱۳ ص ۲۶۱ / البدائع: ج ۲ ص ۳۳۸ / البحرا الرائق: ج ۲ ص۵۶۴.

وتړل سو نو د هغو ټولو شیانو څخه ځان وساته چې د احرام د تړلو څخه وروسته منع وي.

## د احرام مسائل

(۱) د احرام لپاره غسل کول د هر محرم لپاره د څلورو مذاهبو د امامانو په نزد سنت دی. (۱)

(۲) د احرام لپاره غسل کول افضل دی اودس هم صحت لري. (۲)

(۳) که یو څوک د احرام لپاره غسل او اودس ونه کړي روا دی خو مکروه کار دی. (۳)

(۴) د احرام لنګ او پټوسپین رنګ افضل دی خو بل رنګ هم صحت لري. (٤)

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج۲ ص ۱۷۱ / غنية الناسك: ص۶۷ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۲۹۶۲.

(۲) وإذا أراد أن يغتسل أو وضئ والغسل أفضل، البدائع: ج ۲ ص ۳۳۴ / التاتارخانية: ج ۲ ص ۱۵۳ /المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۴.

(۳) و لو أحرم بلا غسل و وضوء جاز ويكره، غنية الناسك: ص۷۰ / اللباب: ص ۱۰۹.

(٤) و كونه أبيض أفضل من غيره كالتكفين، البحر الرائق: ج۲ ص ۵۶۲.

(۵) که چیري محرم د احرام لپاره یوازي لنګ وتړي چي عورت یې په پټېږي دا هم روا دی.[۱]

(۶) په تلبیه ویلو کي افضل دا دي چي د دوه رکعته لمانځه وروسته یې دستي ووایي، په طیاره یا موټر کي هم صحت لري.[۲]

(۷) چي یوازي تلبیه ووایي اود احرام نیت یې نه وي کړی محرم نه ګرځي.[۳]

(۸) محرم که په میقات کي صرف نیت وکړی تلبیه یې نه وویل بیا یې په داخل د میقات کي وویل نو دم پر لا زمیږي.[٤]

---

(۱) و لو لبس ثوبا واحدا یستر عورته جاز، کذا في الاختیار لشرح المختار الهندیة: ج ۱ ص ۲۲۲ / الدر المختار: ج ۲ ص ۱۷۱.

(۲) ثم یلبي في دبر الصلوة أوبعد مااستوت به راحلته و التلبیة في دبر الصلاة أفضل عندنا، الهندیة: ج ۱ ص ۲۲۳ / الخانیة عل هامش الهندیة: ج ۱ ص ۲۵۸ / الهدایة مع فتح القدیر: ج ۲ ص ۳۳۹.

(۳) و أما شرطه فالنیة حتی لا یصیر محرما بالتلبیة بدون نیة الاحرام الهندیة: ج ۱ ص ۲۲۲ / المبسوط للشیباني: ج ۲ ص۴۵۶ / غنیة الناسك: ص ۶۵.

(٤) الهندیة: ج۱ ص۲۵۳.

(۹) او چي يوازي د احرام نيت وکړي او تلبيه يې نه وي ويلې زمونږ د مذهب مطابق يوازي په نيت کولو سره محرم نه ګرځي تر څو چي تلبيه يې نه وي ويلې. (۱)

(۱۰) تلبيه يو واره ويل شرط او فرض دي او تکرار يې سنت دی. (۲)

(۱۱) او په تلبيه کي شرط دا دی چي په ژبه يې ووايي يوازي په زړه کي قصد يعني په زړه کي ويل او نيت کول صحت نه لري، په تلبيه کي د حج يا عمرې معلومول سنت دي. (۳)

(۱۲) که چا د تلبيې پر ځای د احرام په نيت «سبحان الله» يا «الحمد لله »يا «لا اله الا الله» يا«الله اکبر» او يا نور دغسي الفاظ وويل احرام يې

---

(۱) ولا يصير محرما عندنا بمجرد النية ما لم يضم إليها التلبية، التاتار خانية على هامش الهندية ج:۱ ص ۲۸۵ / غنية الناسك: ص ۶۵ / المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۲۰۸.

(۲) و التلبية مرة شرط و هو عند الاحرام و الزيادة على المرة سنة و الاكثار منها مستحب في كل حال، غنية الناسك: ص ۷۵ / لباب المناسک: ص ۱۱۴.

(۳) الشامي: ج ۲ ص ۱۷۲ / الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۳۳ / لباب المناسک: ص ۱۱۳.

صحيح دی او محرم ګرځي که تلبيه ويلای سي او که نه. (١)

(**١٣**)دتلبيې دغه خاص الفاظ سنت دي شرط نه دي. (٢)

(**١۴**) دتلبيې څخه مراد ذکر دی او دغه د تلبيې خاص الفاظ نه دي مراد. (٣)

(**١۵**) او ګونګی چي د حج يا عمرې نيت وکړي د ده لپاره مستحب دا دی چي د احرام د نيت سره د تلبيې سره ژبه وښوروي خو دا واجب نه ده، او په لمانځه کي د ګونګي لپاره د ژبي ښورول نسته. (٤)

---

(١) الهنديه: ج ١ ص٢٢٢ / لباب المناسک: ص ١١٤ / غنية الناسک: ص ٧٦ وأما خصوص التلبية فسنة لاشرط فاذا ترکها و أحرم بغيرها کره تنزيها لترک السنة البحر الرائق: ج ٢ ص ٥٦٥ / الشامي: ج ٢ ص ١٧٣

(٢) الهندية: ج ١ ص ٢٢٢ / لباب المناسک: ص١١۴ / غنية الناسک: ص ٧۶.

(٣) و قول من قال أن التلبية شرط مراده ذکر يقصد به التعظيم لا خصوصها، الشامي ج٢ ص ١٧٣ / غنية الناسک: ص ٧۶ / البحرا الرائق: ج ٢ ص ۵۶۵.

(٤) الفرع الثاني في الاخرس الاصح عند الحنفية يستحب له أن يتحرک لسانه بالتلبية مع النية ولا يجب، الموسوعة الفقهية: ج ٢ ص ١٣٣ / الشامي: ج ٢ ص ١٧٢ / مسلک المتقسط: ص١١۴.

(۱۶) تلبیه په لوړ آواز ویل سنت دي خو په زوره ویلو کې به تکلیف پر ځان نه راولي لکه عوام خلک. (۱)

(۱۷) که یې د تلبیې الفاظ په ژبه دومره کرار وویل چې خپله یې هم نه اوریدل دغسې ویل د صحیح قول مطابق معتبر نه دي. (۲)

(۱۸) او په عرفات کې به تلبیه ډېره ډېره وایي. (۳)

دا تلبیه د لبیک تر نورو اذکارو ځکه بهتري لري،چې د قیامت په ورځ به رسول الله صلی الله علیه وسلم د الله جل جلاله سره لمړنۍ خبره په لَبّیْکَ اللّهم لَبّیْکَ سره وي

(۱۹) د عمرې تلبیه له احرام څخه شروع کیږي بیا تر هغه وخته چې د

---

(۱) و رفع الصوت بها سنة إلا أنه لایجهد نفسه کما یفعله العوام، البحرالرائق: ج ۲ ص ۷۴ / الشامي: ج ۲ ص ۱۷۸ / فتح القدیر: ج ۲ ص ۳۵۱.

(۲) وکذا لو صح الحروف بلسانه ولم یسمع نفسه لم یعتد بها علی الصحیح غنیة الناسک: ص ۷۴ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۲۹۷۲.

(۳) و یلبي فی موقفه ساعه ولایقطع التلبیة وهذا قول عامة العلماء، البدائع: ج ۲ ص۳۵۳ / الهدایة مع الفتح: ج۲ ص ۳۷۴ / التاتارخانیة: ج ۲ ص ۱۶۳.

عمرې په طواف شروع کوي بیا به تلبیه ختمه کړي. [۱]

(۲۰)عمرې والا به د صفا اومروا په سعي کي تلبیه نه وايي،ځکه د عمرې د طواف په شروع سره تلبیه ختمه سوه. [۲]

(۲۱) د حج تلبیه د احرام څخه شروع کیږي بیا تر هغه وخته پوري به یې وايي چي د جمرة العقبة (غټ شیطان) د اولي ډبري په ویشتلو شروع کوي تلبیه به ختمه کړي. [۳]

---

(۱) فانه يقطع التلبية إذا استلم الحجر و أخذ في طواف العمرة، البدائع: ج ۲ ص ۳۵۸ / الموسوعة الفقهية: ج ۳۰ ص ۳۱۷.

(۲) فان التلبية تقطع باول شروعه في طوافها، لباب المناسک: ص۱۱۶ / الشامي: ج ۲ ص ۱۷۸ .

(۳) يقطع التلبية مع أول الحصا يرميها من جمرة العقبة في الحج الصحيح، لباب المناسک:

ص ۲٤۸ / التاتار خانية على هامش الهندية: ج ۱ ص ۲۹۵ / الهندية: ج ۱ ص ۲۳۱.

# په احرام کې د خوشبويي د استعمالولو مسائل

احرام ته ځکه احرام وايي چې دده په سبب سره حرامېږي هغه مباح او روا کارونه چې تراحرام مخکښې روا وي، لکه: خوشبويي، د ګنډل سوي جامې اغوستل او داسې نور.... (۱)

(۱) محرم که ډېره خوشبويي استعمال کړي دم پر لازم دی، او که لږ استعمال کړي صدقه پر لازمه ده، که خوشبويي خپله لږ وي نو د اندام اعتبار يې کېږي او خوشبويي يې اعتبار نه لري، يعني که يو غټ اندام لکه: سر مخ، ږېره، خوله، پنډۍ، ورون، بازو، لاس، ورغوی او داسې نور.... که هر يو ټوله په خوشبويه سو دم لازم دی، او که تر اندام کم وي او يا اندام کوچنی وي لکه پوزه، غوږ، سترګې، ګوته، برېتونه بيا صدقه ده، او که خوشبويي خپله ډېره وي بيا خوشبويي اعتبار لري او اندام اعتبار نه لري، يعني که د اندام څلورمه حصه په خوشبويه سوه دم لازم دی، او که تر څلورمه حصه کم وي بيا صدقه ده. (۲)

---

(۱) جوهرةٌ: ج ۲ ص۳۶۵ / العلاج في أمراض الحجاج : مؤلف مولوي محمد سرور الحقاني ص٦٧

(۲) هكذا في محيط السرخسي و التبيين / الهندية: ج ۱ ص ۲۴۱ / الشامي: ج ۲ ص ۲۱۸ غنية الناسك: ص۲۴۳ / لباب المناسك: ص ۳۴۶

(۲) هغه خوشبويي چي ناظر يعني کتونکی يې ډېره بولي هغه ډېره بلل کيږي او هغه چي ناظر يې لږ بولي هغه لږ بلل کيږي. (۱)

(۳) که محرم په يوه مجلس کي په خپل ټولو اندامو باندي خوشبويي ولګوي د ټولو اندامو په وجه يو دم لازم دی. (۲)

(۴) که محرم پر بدن باندي د خوشبويي د استعمال په وجه دم حلال کړي او خوشبويي د بدن څخه ليري نه کړي نو پر ده بل دم سته، ځکه خوشبويي د بدن څخه ليري کول واجب دي. (۳)

(۵) محرم چي خوشبويي د احرام پر جامه استعمال کړي که ددغه خوشبويي مقدار تر لوېشت په لوېشت کښي زيات سو او يوه ورځ او يا يوه شپه دوام وکړي نو دم پر لازميږي او که د خوشبويي مقدار تر دغه کم وو او يا مقدار پوره وو خو پوره ورځ او يا پوره شپه پاته نه سو نو بيا

---

(۱) غنية الناسك: ص ۲۴۴ / فتح القدير: ج ۲ ص۴۳۹

(۲) لباب المناسك: ص ۳۴۷ / غنية الناسك: ص۲۴۴ / مجامع المناسك: ص ۳۸۴

(۳) الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۸۳ الدرالمختارمع الشامي: ج ۲ ص ۲۱۸ / غنية الناسك: ص۲۴۶

صدقه واجب ده.[1]

(۲) په کومه کوټه کښې چې خوشبويي پاشل سوې وي په دغه کوټه کي د محرم اوسېدل پروا نه کوي.[2]

(۷) د جامې هغه خوشبويي چې دم په لا زميږي كه دستي پرېولل سي د دم څخه خلاصيږي او صدقه هم نسته خو د پرېمنځلو په وخت کښي به ځان خصوصاً لاسونه د خوشبويي څخه ساتي، د بل غير محرم په واسطه دې ليري کړي يا دي دستکلې ياکڅوړه په لاس واغوندي او كه بل احرام لري نو هغه دي استعمال کړي.[3]

(۸) که د چيښلو په شي د خوشبويي شی گډ سي، لکه په چاى کي چي هېل گډسي نوکه دخوشبويي شی ډېر وي نو په ډېر چښلو سره يې دم لا زميږي، او په لږ چيښلو سره صدقه ده او که د خوشبويي شی

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۸۳ / الشامي: ج ۲ ص ۲۱۸

(۲) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۳۶ / البدائع: ج ۲ ص ۴۱۸ / لباب المناسك: ص۳۵۶

(۳) غنية الناسك : ص ۲۴۳ / إرشاد الساری: ص ۳۵۵

مغلوب او لږ وي نو په څښېدلو سره يې صدقه لازمه ده، خو که يې په يوه مجلس کې په ډېرو وارو وڅښي نو بېرته دم لازم دی. (۱)

(۹) د احرام په حالت کښې هغه شربت چيښل چې خوشبويي غالبًا ډېره وي دم لازم دی، او که مغلوبه يعني لږ وي صدقه لازمه ده، خو که يې دغه د کموالي په صورت کښې څو ځله په يوه مجلس کښې وچيښي نو دم لازم دی. (۲)

(۱۰) د هغه صابون استعمال په احرام کښې چې خوشبويي نه لري د هغه په استعمال سره شی نه لازميږي، خو که خيري يې ليري کولې نو مکروه دی، اوهغه صابون چې خوشبويي ولري که چيري داسي وي چې د خوشبويي اجزاء يې د پاکوالي تر اجزاوو لږ وي نو خوشبويي مغلوبه بلل کيږي، او که دغه د خوشبويي اجزاء هغه د پاکوالي تر اجزاوو ډېر وي نو بيا خوشبويي غالبه بلل کيږي، يعني که خوشبويي ډېره وي او ډېره استعمال سي نو دم لازم دی.

---

(۱) الناسك: ص ۲۴۷ / الهندية: ج ۱ ص ۲۴۱ / شرح اللباب: ص ۳۵۳

(۲) غنية الناسك: ص۲۴۷ / اللباب الشامي: ج ۲ ص ۲۲۸

او که لږ استعمال سي او یا یې خوشبویي لږ وي بیا صدقه ده. [1]

(۱۱) په احرام کښې درانجو استعمالول پروا نه کوي که په دغه رانجو خوشبويي نه وي ګډه، او که خوشبويي ور سره ګډه وي نو بیا په یو ځل او دوه ځله استعمال سره صدقه لازمیږي او په څو ځله استعمال سره دم لازمیږي. [2]

(۱۲) په احرام کښې باید داسي چپلکي په پښو سي چي د پښې د مخ دغه د مابین پورته هډوکی نه پټوي او دغه هډوکي ته په عربي کي کعب وایي او ددغه کعب لفظ څخه په دغه ځای کښې بیجلکه نه ده مراد. [3]

(۱۳) که محرم بې له عذره بوټونه او جرابي په پښو کړي که پوره ورځ یا شپه وي دم پر لازم دی او که تر دغه کم وي نو صدقه لازمه ده. [4]

---

(۱) غنیة الناسك: ص ۹۰ / لباب المناسك: ص ۱۳۵ / فتاویٰ دار العلوم زکریا: ج۳ ص ۴۴۴

(۲) غنیة الناسك: ص ۲۴۹ / فتح القدیر: ج ۲ ص ۴۴۱ / المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۳۶

(۳) البحر الرائق: ج ۲ ص ۵۶۷ / فتح القدیر: ج۲ ص۲۴۶ / الشامي: ج ۲ ص۱۷۷ / المحیط برهاني ج ۳ ص ۴۳

(٤) البدائع: ج ۲ ص ۴۱۰ / الشامي: ج۲ ص ۱۷۷

(۱۴) په احرام کښې تلتك يا شړۍ پر داسې طريقه باندې پر ځان اچول چې مخ او سر يې لڅ وي پروا نه کوي. (۱)

(۱۵) که پر محرم دانه راختلې وي اودی يې کښېکارېي هغه وينه او اوبه وکړي او يا غاښ وکاږي او هغه وينه وکړي، په دواړو صورتو کښې نه دم سته نه صدقه. (۲)

(۱۶) محرم که د ګرمۍ له کبله د احرام پټو داوړې څخه ليرې کړي يا د يخ له کبله پټو او لنګ دوه دوه کړي پروا نه لري. (۳)

(۱۷) د محرم لپاره انګشترۍ په ګوته کول يا ساعت په لاس کول روا دي محرم که نر وي او که ښځه، فرق نه لري. (٤)

---

(۱) الشامي: ج ۲ ص ۱۷۶ / محمودية: ج ۱۰ ص ۴۳۷ / منحة الخالق على البحر: ج ۲ ص ۵۷۰

(۲) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۳۷ / غنية الناسك: ص ۹۲ / البدائع: ج ۲ ص ۴۱۸

(۳) الشامي: ج ۲ ص ۱۷۰ / فتاویٰ دار العلوم ديوبند: ج ۶ ص ۴۲۱ / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۲

(٤) إرشاد الساری: ص ۱۳۵ / الدر المختار: ج ۲ ص۱۷۸ / الفقه الحنفي و أدلته: ج ۱ ص ۴۲۲ / الفقه الاسلامي و أدلته: ج ۳ ص ۲۳۱۷

(۱۸) محرم د احرام په حالت کښې اهلي حيوانات لکه پسه، بزه، غوا او اوښ حلالولای سي. (۱)

(۱۹) په احرام کښې د سراوږيري ږمونځول يا د ږيري خلالول مکروه دي. (۲)

(۲۰) که د محرم نوك مات سي تر ماتېدو وروسته يې پرې کړي هيڅ شی نه لازميږي. (۳)

(۲۱) نارينه او ښځې په احرام کي عطر نسي وهلای او نه په خوشبويو روغنياتو وريښتان او بدن غوړولای سي او ښځې بايد د کور دباندي هيڅکله په ځان باندي عطر ونه وهي، ځکه ښځه چي په ځان عطر ووهي او بيا د خلګو سره تېريږي د عطرو بوی يې پر بېګانه او نامحرمو خلګو ولاړيږي دا ډول ښځي رسول الله صلی الله عليه وسلم ګنهګاري بللي دي.

---

(۱) وذبح الابل والبقر والحيوانات الاهلية مباح وذالک لانها لاتدخل في تحريم الصيد ولامحرمات الاحرام باتفاقهم. الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۷۰ / غنية الناسك: ص ۹۳

(۲) الموسوعة الفقهية: ج ۱۱ ص۵۴ / الشامي: ج ۱ ص۸۶ / النهر الفائق: ج ۱ ص ۴۲ / إرشاد الساری: ص۱۳۳ / غنية الناسك: ص ۹۰

(۳) التاتارخانية: ج ۲ ص۱۹۴ / الهندية: ج۱ ص ۲۴۴

(۲۲) داحرام په حالت کې دبام (ويکس) خوشبويي که ډېره وي او پر ټوله تندي ولګول سي دم لازم دی او که پرلږحصه باندي يووار ولګول سي بيا صدقه لازمه ده. (۱)

(۲۳) د محرم لپاره د احرام تر ترلو مخکي پر بدن باندي د خوشبويي لګول سنت دي او د احرام پر پټو باندي دهغه خوشبويي لګول چي ذات يې تر احرام وروسته پاتيږي رواه نه دي. (۲)

(۲۴) که محرم د احرام ترلو مخکي خوشبويي استعمال کړه او د هغه خوشبويي بوی تر احرام ترلو وروسته هم پاته وو دغه پروا نه کوي. (۳)

(۲۵) که محرم د يوه لاس يا پښې ټول نوکان پرې کړي دم لازم دی. (٤)

(۲٦) که محرم ته احتلام پيښ سي بې له غسله بل هيڅ نه پر لازميږي. (٥)

---

(۱) شرح اللباب ص ۳۵۳.

(۲) فتح القدير: ج ۲ ص ۳۵۲ / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۳ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۲۹۷۰.

(۳) البدائع: ج ۲ ص ۴۱۸ / المبسوط: ج ۴ ص ۱۳۶.

(٤) الهداية مع الفتح: ج ۲ ص ۴۵۰ / ارشاد الساري: ص ۳۶۷.

(٥) الهندية: ج ۱ ص ۲۴۴ / غنية الناسک: ص۲۶۸.

(۲۷) په احرام کي چي د جماع په وجه کومه جزاء لا زمیږي په دې کي د قصداً او سهواً،خبرتیا او ناخبرتیا ، د زور او رضا فرق نسته د ټولو یو حکم دی. (۱)

(۲۸) که محرم ښځي ته په شهوت وګوري او انزال سي نه دم پر لازم دی نه صدقه. (۲)

(۲۹) که عمره کوونکی د عمرې تر طواف وروسته د سر خریلو مخکي جماع وکړي عمره نه فاسدیږي البته دم پر لا زم دی. (۳)

(۳۰) محرم داحرام په حالت کي خپل ځان ته یا بل ته پیچکاری لګولای سي، ځکه په ستن سره پوست سری کیږي او ستن یو قسم دواء ده اومحرم د پوست سري کولو او دواء څخه منع نه دی او په احرام کي سګریټ څکول مکروه دي. (٤)

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ٤٠ ص٢٨١ / البدائع: ج ٢ ص ٤٦٢.

(۲) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ١٣٣.

(۳) غنية الناسک: ص٢٧٠ / الشامي: ج ٢ ص٢٣٠

(٤) البدائع: ج ٢ ص ٤١٨ / الموسوعة الفقهية: ج٢ ص ١٧٠/ فتاوى دارالعلوم زكريا: ص ٤٤٣/ الشامي: ج ٢ ص ١٧٨

(۳۱) بعضي خلك په احرام كي دبدن دلګېدو په وجه نېکر اغوندي، يا د ورنو سره خوشبويه پوډر اچوي، که دغه نېکر يې دپوره ورځې په اندازه اغوستى وي او يا دغه خوشبويي د پوډرو ډېره وي، نو ددغه محرم اختيار دى، که دم حلا لوي او که شپږ مسکينانو ته نيمه کاسه غنم ورکوي، که درې روژې نيسې.

او که دغه نېکر دپوره ورځې په اندازه وا نه غوندي او يا دپوډرو خوشبو يي کمه وي بيا ددغه محرم اختيار دى که يو مسکين ته نيمه کاسه غنم صدقه کوي او که يوه روژه نيسي. (۱)

---

(۱) هندية: ج ۱ ص ۲٤٤ / مبسوط للسرخسي: ج ٤ ص ۱۳۷ / أما ما يجب فيه الصدقة إن شاء تصدق بما وجب عليه من نصف صاع أو أقل على مسكين أو صام يوما. الشامي: ج ۲ ص ۲۲۸ / اللباب: ص ۳۷

# پر کعبه شریفه د طواف کولو فضیلت

پر بیت الله شریف هره ورځ یو سل او شل رحمتونه د الله تعالی نازلیږي شپېته (٦٠ ) رحمته یې دطواف کوونکي لپاره،څلوېښت یې دلمونځ کونکي لپاره او شل (٢٠) یې و بیت الله شریف ته د کتونکي لپاره دي،او څوک چي پنځوس طوافه وکړي هغه داسي د ګناه څخه پاکیږي لکه څرنګه چي د مور څخه د پیدا کېدو په ورځ پاک وي، او په طواف کي دغه یوه پښه چي پورته کړي هغه بله پښه یې لا پر ځمکه نه وي ایښې الله پاک دده یوه ګناه معاف کوي یوه نیکي ورته لیکي او یوه درجه یې پورته کوي. (١)

---

(١) وعن ابن عباس رضي الله عنه قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم : ينزل الله في كل يوم على حجاج بيته الحرام عشرين و مائة رحمة، ستين للطائفين و أربعين للمصلين و عشرين للناظرين، رواه البيهقي: باسناد حسن ١٧٦٣،إرشاد الساري للقسطلاني: (ت ٨٢٣) ٧ \ ٧٢٢ إسناده حسن

وعنه رضي الله عنهما قال: قال رسول الله صلى الله عليه وسلم: من طاف بالبيت خمسين مرة خرج من ذنوبه كيوم ولدته أمه، رواه الترمذي،وقال: حديث غريب سالت محمداً يعني البخاري عن هذا الحديث فقال: إنما يروي عن ابن عباس من قوله وعنه ايضا رضي الله عنه قال: سمعت رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول: من طاف بالبيت اسبوعا لا يضع قدما ولا يرفع أخري إلا حط الله عنه بها خطيئة وكتب له بهاحسنة ورفع له بها درجة رواه ابن خزيمه في صحيحه وابن حبان واللفظ له: الترغيب والترهيب: ج٢ ص١٢٣

# طواف

طواف دې ته ويل کيږي چې پر کعبه شريفه باندې په يوه معلومه طريقه سره اووه ځله راګرځيدل.[1]

# دطواف ډولونه

طواف اووه قسمه دی:[2]

(۱)طواف قدوم (۲) طواف زيارت (۳) طواف رخصت (۴) دعمرې طواف (۵) دنذر طواف (۲) دمسجد الحرام دتحيي طواف (۷) نفلي طواف.

---

(۱) الطواف هو الدوران حول الكعبة على الصفة المعروفة،الموسوعة الفقهية: ج۲۵ ص ۱۱ / غنية الناسک: ص ۱۰۹.

(۲) يتنوع الطواف بحسب سبب مشروعيته إلى سبعة أنواع : وهي طواف القدوم ،طواف الزيارة طواف الوداع، طواف العمره، طواف النذر، طواف تحية المسجد الحرام، طواف التطوع، كذا عدها الحنفية الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص۱۲۱/ لباب المناسک: ص ۱۵٦ /غنية الناسک: ص ۱۰۹.

# دطواف نیت او مسائل

(۱) دطواف اصلي نیت فرض دی او تعین یې مثلا (طواف زیارت، یا طواف رخصت) مستحب یا سنت دی.

(۲) دطواف نیت به په زړه کي وکړي او په خوله به داسي الفاظ ووایې اې الله! جل جلاله زه ستا دبیتې دطواف اراده لرم،ته یې را ته اسانه کړې او ته یې را څخه قبول کړې. او اصلي نیت هغه دزړه محکمه اراده ده دخولې الفاظ نیت نه دی اویوازي دغه الفاظ بې له دزړه دنیته کارنکوي(۱)

(۳) که یو څوک دطواف نیت ونه کړي نو همدغه طواف یې ندی معتبر(۲)

(۴) چابک طواف کول اونورو خلګو ته تکلیف او ضرر رسول، په همدغه طریقه به طواف نکوي ځکه خلګو ته ضرر دی او خلګو ته ضرر رسول ناروا عمل دی. (۳)

---

(۱) والمعتبر فیها عمل القلب اللازم للارادة الدر المختار مع الشامي: ج۱ ص ۳۰۵.

(۲) غنیة الناسک: ص ۱۱۰ \ ا لباب المناسک: ص ۱۶۱.

(۳) شرح اللباب : ص ۱۸۷.

# دحجر أسود مسائل

دا د جنت ډبره ده جبرئیل علیه السلام ابراهیم علیه السلام ته راوړې ده د کعبې شریفي د دېوال په جنوب شرقي کونج کي پرته ده او دمطاف دمځکي څخه «۱۰» لس سانتی او یو متر لوړه پرته ده مخکي یوه ټوټه وه بیا دزمانې دحوادثو په وجه ماته سوه اوس اته ټوټې ده په یوه غټه ډبره کي نیول سوې ده. (۱)

(۱) د طواف د نیت وروسته به پر خپل راسته طرف روان سي هر کله چي حجر اسود ته برابر سي مخامخ به ودرېږي او داسي به ووايي:

**بِسْمِ اللّٰهِ وَ اللّٰهُ أَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ وَ الصَّلَوٰةُ وَ السَّلَامُ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ.** او د الله اکبر د ویلو په وخت کي به لاسونه تر غوږو پوري پورته کړي لکه په لمانځه کي، او د لاسو ورغوي به حجر اسود ته مخامخ کړي او تر دغه وروسته به حجر اسود مچ کړي او یا به یې مسح کړي یا به اشاره ورته وکړي. (۲)

(۱) تاریخ مکة المکرمة: ص۴۲ و معالم: ص۴۸

(۲) لباب المناسک: ص۱۴۴ /الشامي: ج ۲ ص۱۸۰

(۲) د طواف شروع کول له حجر اسود څخه واجب دي. [۱]

(۳) د طواف د نیت کولو په وخت کي چي څوک د حجر اسود برابري ته نه وي رسېدلي ډېر لیري وي په دغه وخت کي لاسونه پورته کول د څلورو سره امامانو په نزد بدعت او په اتفاق سره مکروه دي. [۲]

(۴) د حجر اسود د اشارې په وخت کي حجر اسود ته مخامخ درېدل مستحب دي. [۳]

(۵) د محرم لپاره د حجر اسود مچول یا مسح کول په داسي حال کي چي عطر پر پاشل سوي وي ندي روا، او نه به يې مسح کوي بلکه اشاره به ورته وکړي او که يې په دغه حال کي مسح کړي نو که لاس یا خولې ته ډېره خوشبويي ورسېده دم پر لازمېږي، او که لږ خوشبويي وه صدقه پر لازمه ده. [٤]

---

(۱) إن الافتتاح من الحجر الاسود واجب، البحر الرائق: ج۲ ص ۵۷۴ / غنية الناسک: ص۱۱۲

(۲) غنية الناسک: ص ۱۱۳ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۰

(۳) و هذا استقبال مستحب غير واجب، الهندية: ج ۱ ص ۲۲۵ / التاتار خانية: ج ۲ ص۱۵۶

(٤) المبسوط للسرخسي: ج ۲ ص۱۳۶ / البحر الرائق: ج ۳ ص ۵ / غنية الناسک: ص ۲۴۳

(۶) که د حجر اسود په مسح کولو یا مچولو خلګو ته ضرر رسېدی په دغه وخت کي به نه حجر اسود مچوي او نه به يې مسح کوي بلکي مخامخ به حجر اسود ته ودرېږي او لاسونه به پورته کړي، لکه لاسونه چي پر ايږدي او په لاسو سره به اشاره وکړي او دا به ووايي

**بِسْمِ اللّٰهِ وَ اللّٰهُ أَكْبَرُ وَ لِلّٰهِ الْحَمْدُ وَ الصَّلَوٰةُ وَ السَّلَامُ عَلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ**

او تر اشارې وروسته به خپل لاسونه مچ کړي. (۱)

(۷) دطواف يوشوط له حجراسود څخه تر حجر اسود پوري دی. (۲)

او تر کوم طواف وروسته چي د صفاء او مروا سعي نه وي لکه نفلي طواف او طواف الوداع نو په هغه طواف کښي اضطباع او رمل هم نسته مګر د حج، عمرې، او قدوم په طوافو کښي دواړه سته. (۳)

---

(۱) لباب المناسک: ص۱۴۵ / غنية الناسک: ص ۱۰۳

(۲) ثم الشوط من الحجر الاسود الى الحجر الاسود ، الهندية: ج۱ ص ۲۲۵ / البحرالرائق: ج ۲ ص ۵۷۶ التاتارخانية على هامش الهندية: ج ۱ ص ۲۹۲

(۳) شرح اللباب: ص ۱۷۶ / غنية الناسک: ص ۱۱۸وص ۱۱۹/ الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۳٤

# د اضـــــطباع مسائل

## اضطباع يعني راسته اوږه لڅول

(۱) اضطباع دې ته وايي چي د احرام پټو تر راسته اوږه لاندي وباسي او پر چپه اوږه يې واچوي او راسته اوږه لڅه پريږدي. چي د طواف په ټولو شوطونو کښې تر سره کيږي مګر د لمانځه کولو په وخت کښې بايد اوږه پټه سي. (۱).

(۲) اضطباع په هغه طواف کي سنت ده چي تر هغه طواف وروسته د صفا او مروا سعي يعني تګ او راتګ کيږي لکه د عمرې طواف، طواف قدوم او طواف زيارت چي تر سر خرييلو مخکي طواف کوي او وروسته بيا سعي کوي. (۲)

(۳) د طواف په ټولو شوطونو کي اضطباع يعني د راسته اوږې لڅول سنت دي. (۳)

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۵ ص ۱۰۹ / البدائع: ج ۲ ص ۳۴۲ / الهندية: ج۱ ص ۲۲۵

(۲) غنية الناسک: ص ۱۱۸ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص۱۳۴

(۳) لباب المناسک: ص ۱۷۶ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۱.

(۴) مستحب دا ده چي د طواف تر شروع کولو لږ مخکي اوږه لڅه کړي. (۱)

(۵) او هر کله چي د طواف څخه فارغه سوه نو اضطباع به ختمه کړي او اوږه به پټه کړي، د طواف دوه رکعته لمونځ په لڅه اوږه باندي مکروه دی. (۲)

## د رمــــل مسائل

(۱) رمل دې ته وايي چي سړی چابک - چابک روان وي اوږې ښوروي لکه هغه جنګي پهلوان چي د دوو صفو په مابين کي په پهلواني سره ګرځي. (۳)

(۲) رمل د نارينه لپاره د طواف په اولو درو شوطونو کښي قدمونه نژدې نژدې اخيستلو او د اوږو ښورولو ته رمل ويل کيږي، په پاته شوطونو کښي رمل نسته.

(۱) فتح القدير: ج ۲ ص ۳۵۵ / غنية الناسک: ص ۱۱۸

(۲) الموسوعة الفقهية: ج۲۹ ص۱۳۴ / الشامي: ج ۲ ص۱۸۱ / شرح اللباب: ص ۱۴۳.

(۳) الهندية: ج ۱ ص۲۲۶ / التاتار خانية: ج ۲ ص۱۵۶.

(۳) اوږې ښورول چي رمل یې بولي په هر هغه طواف کي سته او سنت دي چي تر هغه وروسته د صفا او مروا سعي وي. [۱]

(۴) رمل د طواف په اولو درو شوطو کي سنت دی په پاته څلورو شوطو کي به رمل یعني اوږې ښورول نه کوي. [۲]

(۵) که محرم د طواف په ټولو شوطونو کي رمل وکړي شی نه پر لا زمیږي خو دغه فعل یې د سنت خلاف دی. [۳]

(۶) په کوم طواف کي چي رمل یعني اوږې ښورول او اضطباع یعني راسته اوږه لڅول بې له عذره که هریو پاته سي پرېښول یې مکروه دي ځکه سنت پاته سو خو طواف یې صحیح دی. [٤]

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص۱۳۴ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۳.

(۲) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۳ / البدائع: ج ۲ص ۳۴۱ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۳۵

(۳) البحر الرائق: ج ۲ ص ۵۷۸ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۳ / غنية الناسک: ص ۱۰۴

(٤) شرح اللباب: ص ۱۸۱.

(۷) او هغه طواف چې په کالو کي وي بلکل رمل او ړې ښورول او چابک چابک تلګ نسته نو بايد د ځانه شی را ونه باسي او که محرم مريض وي او ډېر ضعيف وي يا سپين ږری وي بېله رمل څخه دي طواف وکړي. (۱)

## د حـــطيم شريف مسائل

(۱) حطيم شريف د کعبې شريفي په شمالي طرف کي دی د کعبې شريفي دننه حصه په حطيم شريف کي (۳) متره ده که طواف کوونکی په حطيم شريف کي دننه تېر سي دغه طواف راګرځول غواړي افضله طريقه دا ده چي ټول طواف را وګرځوي. (۲)

(۲) که څوک د عمرې په طواف يا د حج يعني طواف زيارت کي په حطيم شريف کي دننه تېر سي دغه طواف به بيرته راوګرځوي که يې نه راوګرځوي دم پر لازميږي. (۳)

---

(۱) لباب المناسک: ص ۱۴۸ / غنية الناسک: ص ۱۰۴ / معلم الحجاج: ص ۱۴۰

(۲) و لو طاف في داخل الحجر فعليه أن يعيد والافضل أن يعيد الطواف كله، البدائع: ج ۲ ص ۳۱۴ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۲۹

(۳) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۲ / غنية الناسک: ص ۱۱۴ / الهداية مع الفتح: ج ۲ ص ۴۶۰

(۳) که په طواف صدر یا طواف قدوم یا نفلي طواف کې په حطیم شریف کې تېر سي د هر شوط په بدله کې چي په حطیم کې تېر سوی وي نیمه کاسه د غنمو صدقه لازمه ده. (۱)

(۴) د رکن یماني مسح کول په هر شوط کې مستحب دي په دواړو لاسو به رکن یماني مسح کړي یا به یې په راسته لاس سره مسح کړي، په چپه لاس به یې نه مسح کوي او رکن یماني به نه مچوي او نه به سجده پر کوي، او که یې مسح کولای نه سوای، په لاسو به اشاره نه ورته کوي. (۲)

(۵) په طواف کې د قرآن کریم تر تلاوت ذکر کول افضل دي او کرار ویل مستحب دي. (۳)

---

(۱) و کل صدقة تجب في الطواف فهي لکل شوط نصف صاع، غنية الناسک: ص ۲۴۰ / لباب المناسک: ص۴۴۰ / الشامي: ج ۲ ص ۲۲۷

(۲) الدر المختار مع الشامي: ج ۲ ص۱۸۴ / لباب المناسک: ص ۱۵۱

(۳) فتح القدير: ج ۲ ص ۳۹۰ / اعلاء السنن: ج ۷ ص ۳۰۳۹

په طواف کي دغه ذکر افضل دی.

**سُبْحَانَ اللّٰهِ وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ وَلَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَاللّٰهُ أَكْبَرُ وَ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ اِلَّا بِاللّٰهِ الْعَلِيِّ الْعَظِيْمِ.** (١)

(٦) د طواف په مابين کي د دعاء لپاره درېدل او دعاء کول مکروه دي او په طواف کي چي دعاء کوي لاسونه به نه پورته کوي. (٢)

(٧) په طواف کي د لمانځه په رقم لاسونه ايښول مکروه دي لاسونه به په طواف کي ايله نيسي. (٣)

(٨) په طواف کي کعبې شريفي ته مخامخ کېدل حرام دي. (٤)

---

(١) محيت عنه عشر سيئات و كتبت له عشر و رفع بها له عشر درجات، فتح القدير: ج ٢ ص ٣٥٦ / شرح النقاية: ج ٢ ص ٢٤٥ / إعلاء السنن: ج ٧ ص٣٠٤١

(٢) إنه صلى الله عليه وسلم دعا في الطواف و لم يرفع يديه، منحة الخالق على البحر: ج ٢ ص ٥٧٢ / شرح اللباب: ص ١٥٠ / غنية الناسک: ص ١٢٦

(٣) اما وضع اليدين كما في الصلاة فمكروه، إعلاء السنن: ج ٧ ص٣٠٤٢ / غنية الناسک: ص ١٢٢

(٤) واما محرماته فا بتداء الطواف من غير الحجر ولو مابين الركنين و اداء شئ من الطواف مع استقبال البيت ، معلم الحجاج ص ١٢٦ / غنية الناسک ص ١٣٦

(۹) طواف کول دوه وخته مکروه تحريمي دي، اول د فرضي لمانځه د جماعت په وخت کي او دوهم چي امام د جمعې خطبه وايي، دا دوه وخته طواف کول د څلورو مذهبو په نزد مکروه تحريمي دي.(۱)

(۱۰) طواف کونکی چي د فرضي لمانځه يا د جنازې د لمانځه د درېدلو په وخت کي د طواف څخه ووځي نو وروسته دغه طواف د سره راګرځېدل نه غواړي هغه پاته دي پوره کړي.(۲)

(۱۱) د طواف په مابين کي د ضروري کار لپاره وتل روا دي پروا نه کوي.(۳)

(۱۲)اودطواف دمابين څخه بې له ضرورته وتل مکروه کار دی خو طواف نه فاسدوي.(٤)

---

(۱) غنية الناسک: ص ۱۲۷ / شرح اللباب: ص ۱۸۳

(۲) فتح القدير: ج ۲ ص۳۸۹ / المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۵۴

(۳) شرح اللباب: ص ۱۸۱ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۴۰

(٤) الشامي: ج ۲ ص ۱۸۳/ غنية الناسک: ص ۱۲۶ / اللباب: ص ۱۸۳

(۱۳) په طواف کي د ديني مسئلې پوښتنه کول يا بل چا ته ورښودل دواړه روا دي.[۱]

(۱۴) که يو څوک په مرداره جامه باندي طواف وکړي شی نه پر لا زميږي خو مکروه کار دی، ځکه سنت پاته سو چي هغه د جامې پاکوالی دی.[۲]

(۱۵) په داسي حال کي طواف کول چي پاکي موزې يا چپلکي يې په پښو وي روا دي خو بې له عذره په چپلکو کي طواف کول بې ادبي ده.[۳]

(۱۲) نفلي طواف په شروع سره لا زميږي که يې يو وار په نفلي طواف شروع وکړه نو بيا پوره کول پر لازم دي.[٤]

---

(۱) غنية الناسک: ص ۱۲۵ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۴۰

(۲) الشامي: ج ۲ ص ۱٦۲ / اللباب مع الشرح: ص ۳۹۲

(۳) يجوز الصلاة مع الخفين والنعلين إذا کانا طاهرين فالطواف أولى، المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۵۵ / البدائع: ج ۲ ص ۳۱۳ / غنية الناسک: ص ۱۲۷

(٤) غنية الناسک: ص ۱۰۸ / الشامي: ج ۲ ص ۲۲۲ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۲۳

(۱۷) که د طواف په مابین کې بې اودسه سي ولاړ دي سي اودس دي تازه کړي او د طواف پاته شوطونه دي پوره کړي د ټول طواف را ګرځول نسته ور باندي. (۱)

(۱۸) که څوک پر پښو د عمرې طواف ونه کړي په سپرتیا سره یې وکړي لکه پر بایسکل یا بل شي طواف وکړي، نو که یې په پښو طواف کولای سوای خو بیا یې هم پر بایسکل یابل شي وکړی،نو بیرته به دا طواف راګرځوي که یې نه راوګرځوي دم پرلازم دی او که یې په پښو طواف نسوای کولای هغه که په سپرتیا سره طواف وکړي شی نه پر لازمیږي. (۲)

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۱۳۱ / فتح القدير: ج ۲ ص ۳۸۹ / المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۵۴.

(۲) فلو طاف لزيارة أو العمرة راكبا أو محمولا أو زحفا بلا عذر فعليه الاعادة أو الدم، وإن بعذر فلا شی علیه، غنية الناسک: ص ۱۱۴

# د ملتزم شريف بيان

(۱) ملتزم شريف د کعبې شريفي د دروازې او د حجر اسود په مابين کي تقريباً دوه (۲) متره دی.[۱]

(۲) افضل دا دی چي د طواف وروسته ملتزم شريف ته راسي بيا د طواف لمونځ وکړي بيا د زمزم اوبه وڅښي.[۲]

(۳) د طواف د شروع کېدو تر مخه ملتزم شريف ته ورتلل بدعت دی.[۳]

---

(۱) تاريخ مكة: ص ٤٦

(۲) الشامي: ج ۲ ص ۱۸۵ / شرح اللباب: ص ۱۵٤ / الموسوعة الفقهية: ج ۳۹ ص ۷۷
ويستحب أن ياتي زمزم بعد الركعتين ثم ياتي الملتزم قبل الخروج إلى الصفاء

(۳) شرح اللباب: ص۱۸۷ / مجامع المناسک: ص ۱۹۹

# د طواف د دوه رکعته لمانځه مسائل

(۱) د طواف وروسته دوه رکعته لمونځ کول زموږ پر مذهب باندي واجب دي. (۱)

(۲) د طواف دغه دوه رکعته لمونځ تر هر طواف وروسته واجب دی که نفلي وي یا واجب، یا مستحب، یا سنت او یا فرض طواف وي. (۲)

(۳) د طواف دوه رکعته لمونځ که مکروه وخت نه وي نو سنت دا دی چي د طواف وروسته یې وکړي او که مکروه وخت وي بیا یې د مکروه وخت تر ختمېدو پوري ځنډول واجب دي. (۳)

(۴) دطواف دوه رکعته لمونځ په دغه وختو کي مکروه دی.

(اول) دسپېدو راختلو وروسته بیا د لمر تر یوه نېزه راختلو پوري.

(دوهم) چي لمر پر سر ودرېږي

---

(۱) و رکعتا الطواف واجب عندنا ، البدائع: ج ۲ ص۳۴۳ / التاتار خانية: ج ۲ ص ۲۵۸

(۲) لباب المناسک: ص ۱۷۱ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۴

(۳) إعلاء السنن: ج ۷ ص ۳۰۳۸ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۴

(د ریم) د مازدیګر د لمانځه وروسته د ماښام د لمانځه ترکولو پورې.

(څلورم) د خطبې په وخت کې هره خطبه چې وي.

(پنځم) چې امام په فرضي لمانځه شروع وکړي. (۱)

(۵) د طواف دوه رکعته لمونځ به په مکروه وخت کې نه کوي بلکې انتظار به کوي تر هغه وخته پورې چې مکروه وخت ختم سي. (۲)

(۶) که یو چا د طواف دوه رکعته لمونځ په مکروه وخت کې وکړه نو دا روا ندي بیرته دوهم وار را ګرځول یې ضروري دي. (۳)

(۷) د هر طواف دوه - دوه رکعتونه واجب به جلا - جلا د هر یوه طواف لپاره کوي، د سهار تر لمر ختو وروسته او وروسته تر فرضو، د ماښام د سنتو تر مخه به یې اداء کوي.

---

(۱) لباب المناسک مع الشرح: ص ۱۷٤ / غنیة الناسک: ص ۱۱۷

(۲) فتح القدیر: ج ۲ ص ۳۸۹ / الشامي: ج ۲ ص ۱۷۹

(۳) غنیة الناسک: ص ۱۱۷ / الشامي: ج ۲ص ۱۸٤

(۸) د طواف دوه رکعته لمونځ کول اول د مقام ابراهیم شاته مستحب دي او که دمقام ابراهیم سره بل چا ته ددغه لمانځه په کولو سره تکلیف رسېدی نو بیا دغه لمونځ په دغه ځای کي فضیلت نه لري، او بیا تر دغه وروسته په کعبه شریفه کي دننه فضیلت لري بیا په حطیم شریف کي تر مېزاب رحمت لاندي، بیا په ټوله حرم کي او تر دغه وروسته د حرم څخه دباندي فضیلت نه لري مکروه دی.(۱)

(۹) که یو څوک د طواف دوه رکعته لمونځ ونه کړي دم نه پر لا زمیږي ځکه هر وخت او هر ځای دغه لمونځ کیږي خو د حرم د حدود دباندي دغه لمونځ کول مکروه دي.(۲)

---

(۱) وإن لم يقدر على الصلاة بالمقام بسبب الزحمة يصلي حيث تيسر له من المسجد الحرام، التتار خانية: ج ۲ ص ۱۵۸ / المحيط البرهاني: ج ۳ ص ۱۸ / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۶، و يستحب مؤكدا أداءها خلف المقام ثم في الكعبة ثم في الحجر تحت الميزاب ثم الخ، منحة الخالق على البحر: ج ۲ ص ۵۸۰ / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۵

(۲) الشامي: ج ۲ ص ۱۸۵ / لباب المناسك مع الشرح: ص ۱۷۱

## دمقام ابراهیم بیان

مقام ابراهیم د جنت ډبره ده جبرئیل علیه السلام و ابراهیم علیه السلام ته راوړې وه د کعبې شریفي په جوړېدو کي به ابرهیم علیه السلام پر درېدی دغه ډبره د کعبې شریفي د شرق په طرف کي د حجر الاسود څخه ۱٤:٥٠ څوارلس نیم متره لیري په هغه ژړه قبه کي پرته ده او د ابراهیم علیه السلام د پښو پلونه مبارکان په کښې سته! (۱)

مقام ابراهیم مچول او مسح کول بدعت دی، نه به یې مچوي او نه به یې هم مسح کوي. (۲)

## د زم زم د اوبو بیان

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: چي د ځمکي پر مخ ښه او بهتریني اوبه د زم زم اوبه دي.

د طواف څخه وروسته دي د زم زم اوبه وڅښي څونه چي څښلای سي ودې څښي او پر سر دې هم توی کړي.

(۱) تاریخ و معالم: ص٦٠

(۲) و لایقبل مقام إبراهیم ولا یستلم فانه بدعة، غنیة الناسک: ص ۱۲۷ / زبدة المناسک: ص ۱۳٥

ابراهیم علیه السلام د الله جل جلاله په حکم د شام څخه خپل ښځه بي بي هاجره رضي الله عنها او د هغې خپل شیدو خوړونکی ماشوم زوی اسماعیل علیه السلام مکې مکرمې ته راوستل د کعبې د ځای سره یې پریښول او ځني ولاړی او د هاجرې رضي الله عنها سره اوبه خلاصي سوې پر خپل ماشوم وبېرېدله صفا ته پورته سوه چي ګوندي یو څوک ووینې خو څوک یې ونه لیده د صفا څخه راکښته سوه د مروا پر خوا په شېله کي په ځغاسته سوه بیا مروا ته پورته سوه اووه ځلي یې همداسي تلګ او راتلګ وکړی، پر اووم شوط چي مروا ته پورته سوه رږغ یې واورېدی، نو سمدستي یې خپل ماشوم اسماعیل علیه السلام ته ورغله دا رږغ د جبرئیل علیه السلام وو، جبرئیل علیه السلام د زم زم ځای په وزر یا پونده وواهه هلته د زم زم چینه په دغه مقدسه ځمکه کي راوبهېده دا هغه د ابراهیم علیه السلام معجزه ده چي نن یې ټول عالم مسلمانان په سترګو ویني او د رسول الله صلی الله علیه وسلم زړه مبارک په پرېمنځل سوی دی او رسول الله صلی الله علیه وسلم ناړي مبارکي په ګډې سوي دي او دغه اوبو ته کتل د سترګو نظر تېزوي او په دغه اوبو کي د خوراک په شان موړتیا او د هر مرض شفاء سته، لکه ابو ذر

غفاري رضي الله عنه چې په مکه مکرمه کې یوه میاشت تېره کړه یوازې یې د زم زم اوبه څښلې هم په مړېدی او هم په اوبه کېدی، او په بل حدیث شریف کې راغلي دي: چې څوک دغه اوبه په هر نیت باندې وڅښي د انسان هغه مقصد او حاجت پوره کیږي، د زم زم د ابو څښل مخ پر قبله افضل دي، او د زم زم د اوبو څښل په ولاړې باندې روا دي او د زم زم اوبه د ځان سره وړل مسنونه طریقه ده، او که پر مریضانو باندې واچول سي نو مستحب دی الله جل جلاله به شفاء ورکړي.(۱)

او ډېر څښل یې د ایمان علامه ده، او هم د نفاق څخه د خلاصون علامه ده، او د څښلو څخه وروسته پرسر او مخ باندې تویول سنت کار دی، د زم زم اوبه په راسته لاس په بسم الله ویلو سره او په درې ساه باندې ډېرې اوبه وڅښي، د دنیا او د آخرت دجائز مقصدونو په نیت به یې وڅښي، د اوبو څښل په راسته لاس سنت دي ځکه چې شیطانان یې په چپه لاس څښي.(۲)

د زم زم په اوبو د بې اودسه اودس کول بې له کراهته جائز دی او د بدن یا

(۱) فقدروي الترمذي: عن عائشة رضي الله عنها ویستحب حمله إلی البلاد. الشامي: ج ۲ ص ۲۷۸ الموسوعة الفقهیة: ج ۲٤ ص ۱۱۵ غنیة الناسک: ص ۱٤۱

(۲) مسلم شریف: ج ۲ ص ۱۷۲ وص ۱۷۳

جامې نجاست په پرېولل مكروه دى.[1]

د تبرک لپاره د هغه كفن استعمال چي په زم زم اوبو باندي پرېولل سوى وي يا لوند سوى وي روا دي، او دا اُميد سته چي ددغه كفن په وجه دي الله تعالى د خپل عذاب څخه نجات وركړي.[2]

د زم زم څاه د كعبې شريفي په شرق طرف كي د حجر اسود څخه ۲۰ شل متره او ۶۰ شپېته سانتىِ ليري واقع دى، **۳۵:۵۰** پنځه دېرش نيم متره ژوروالى لري، د زم زم د اوبو چښلو په وخت كي به دعاوي ډېري كوي.

اوپه آخر كي به الحمد لله ووايي.[3]

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۲۹ ص ۳۵۷ / غنية الناسک: ص ۱۴۰ / الشامي: ج ۲ ص ۱۳۲

(۲) فتاوى رحيمية: ج ۷ ص۶۰ / فتاوى حقانية: ج۳ ص۴۶۳ / فتاوى محمودية: ج ۸ ص۵۲۰

(۳) و هو خير ماء على وجه الارض و ظهر بواسطة جبرئيل عليه السلام و نبع في أقدس بقعة على وجه الارض و غسل به قلب المصطفى صلى الله عليه وسلم و أكثر من مرة و بارک فيه بريقه الشريف و هو طعام طعم و شفاء من كل داء، قال رسول ﷺ خيرماء على وجه الارض ماء زم زم فيه طعام من الطعم و شفاء من السقم أى إن اشرب مائها يغني عن الطعام و يشفي من السقام لكن مع الصدق كما وقع لآبي ذر الغفاري رضي الله عنه، الشامي ج ١ ص٩٦ / فتح القدير ج ٢ ص ٤٠٠ / إعلاء السنن ج ٧ ص٣٢١٩ / الاختيار: ج١ ص ١٠٠وص ١٤١ / الموسوعة الفقهية: ج ٢٤ ص ١٦ / فتاوى النابلسي: ج ١ ص ١٥٤ / تاريخ المكة المكرمة: ص ٧٨ مكة المكرمة تاريخ ومعالم: ص ٦٥/ غنية الناسک: ص ١٤٠

## د صفا او مروا د سعي بيان او مسائل

سعي دې ته ويل کيږي چي اووه واره د صفا او مروا په مابين کي تګ راتګ وکړي چي څلور واره د صفا او درې واره د مروا له طرفه کيږي، د صفا او مروا سعي زموږ پر مذهب واجب ده.(۱)

(۱) سعي بايد د طواف څخه وروسته اداء سي، د عمرې سعي د عمرې تر طواف وروسته اداء کيږي.

(۲) دصفا اومروا په مابينځ کي دسعي دمځکي اوږدوالی (۳۹۵) متره دی او بر يې (۴۰) متره دی.(۲)

(۳) څوک چي سعي شروع کوي نو لومړی دي د طواف په شان د حجر اسود استلام وکړي، بيا دي د صفا و خوا ته ولاړ سي، د سعي نيت د زړه قصد او ارادې ته وايي او په ژبه سره يې ويلو ته ضرورت نسته، په ژبه ويل يې مستحب دي، په سعي کي سنت دا دی چي تر طواف وروسته دستي وسي

(۱) والسعي في الاصطلاح قطع المسافة الكائنة بين الصفا و المروة سبع مرات ذهابا و ايابا بعد طواف في نسك حج أو عمرة/الموسوعة الفقهية: ج ۲۵ ص ۱۱ / ثم السعي بين الصفا والمروة واجب عندنا وليس بركن / إرشاد الساري: ص ۷۵ / البحر الرائق: ج ۲ ص ۵۸۲ .
(۲) مكة المكرمة تاريخ ومعالم: ص ٦٦

د عذر او سترړيا له وجهي يې ځنډول پروا نه لري. (۱)

کله چي صفاته ورنژدې سي نومستحب دادی چي بايد دغه لاندي کلمات وويل سي.

: (**أَبْدَأُ بِمَا بَدَأَ اللّٰهُ تَعَالىَ بِهِ**)

ژباړه: دهغه ځای څخه سعي شروع کوم د کوم ځای څخه چي څښتن تعالی په آيت کي د هغه په نامه لومړی پيل کړی دی.

ور پسې به د قرآن کريم دغه آيت تلاوت کړي:

**إِنَّ الصَّفَا وَ الْمَرْوَةَ مِن شَعَائِرِ اللّٰه**(۲)

ژباړه: بېشکه صفا او مروا د الله تعالی له شعايرو (نښانو) څخه دي.

بيا صفا ته تر داسي اندازې به لوړ پورته کيږي چي کعبه شريفه ليدل کيږي، پر صفا او مروا د لوړ پورته کېدو وروسته کعبې شريفي ته مخامخ درېدل سنت عمل دی، واجب نه دی، او که څوک پورته نسي.

---

(۱) و لو طويلا لا شی عليه والسنة الاتصال به / الشامي: ج ۲ ص ۱۸۵/غنية الناسك: ص ۱۲۸.
(۲) (سُورَةُالبَقَرَة:۱۵۸)

مکروه کار دی البته کوم شی نه پر لازمیږي.(۱)

(۴) کله چې کعبه شریفه په نظر ورغله مخامخ دې بیت الله شریفې ته ودریږي لاسونه به داسې تراوږو پورې پورته کړي چې ورغوي یې د آسمان خواته وي لکه په دعاء کې، بیا به د الله تعالی **حمد** او **ثناء** ووایې او درې ځله به په لوړ آواز تکبیر" **الله أَكْبَرُ** "ووایي او " **لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ** " به هم په لوړ آواز ووایې او پر رسول الله صلی الله علیه وسلم باندې به په کښته آواز درود شریف ووایي بیا به په ډېر عجز او خشوع سره د ځان، نورو دعاء غوښتونکو، خپل هیواد، او د ټولو مسلمانانو له مصیبتونو څخه د خلاصون او نېکمرغۍ لپاره دعاء وغواړي.رسول الله صلی الله علیه وسلم چې به کله و صفا ته پورته سو دغه مبارکې کلمې به یې درې ځله په لوړ آواز ویلې:الله أكبر الله أكبر الله أكبر او بیا به یې دغه کلمات ویل:

**لَا إِلٰهَ إِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَا شَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَ لَهُ الْحَمْدُ يُحْيِيْ وَ يُمِيْتُ وَ هُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ** (۲)

---

(۱) و من سنته الاستقبال/شرح اللباب :ص ۱۸۹/غنیة الناسك: ص ۱۳۵/ولو ترک الصعود علی الصفا والمروة ولاشی علیه لان الصعود علیهما سنة فیکره ترکه/البدائع: ج ۲ ص ۲۱۸ /فتح القدیر: ج ۲ ص ۳۶۱.

(۲) البدائع: ج ۲ ص ۳٤٤ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۳۰۵۰.

(**٥**) بعضي خلك چي پر صفا باندي پورته سي قبلې ته مخامخ ودرېږي او لاسونه تر غوږو او اوږو پوري درې ځله پورته کوي د هر وار سره تکبير وايي دغه عمل د سنت خلاف دی، داسي عمل بايد ونه سي. (١)

د دعاء څخه وروسته به په عادي تلګ سره په ډېر احتياط د مروا و خوا ته لومړی شوط شروع کړي، او د صفا او مروا تر منځ هر ډول ذکر او دعاء کېدلا ی سي، هر ډول دعاء چي يې زده وي او زړه يې غواړي او په هره ژبه چي وي، نارينه د صفا او مروا په سعي کي د لومړي زرغونو ګروپانو څخه تر زرغونو ګروپانو پوري به په نيمه ځغاسته يا ميانه ځغستلو سره وځغلي.کله چي تر دوهم زرغونو ګروپانو تېر سو بيا به په خپل عادي تلګ سره روان سي. (٢)

دغه چابک تلګ د سعي په ټولو شوطونو کي سنت دی. (٣)

---

(١) كما يفعل بعض الجهلة رفع أيديهم إلى اذانهم وأكتافهم ثلاثا كل مرة مع تكبيرة فانه خلاف السنة / غنية الناسك: ص ١٢٩ / شرح اللباب: ص ١٨٩.

(٢) و يستحب أن يكون السعي بين الميلين فوق الرمل دون العدو. الشامي: ج ٢ ص ١٨٦/ شرح اللباب: ص ١٩٠ / غنية الناسك: ص ١٣٠/ معلم الحجاج: ص ١٥٠ .

(٣) وهو أى السعى بين الميلين سنة فى كل شوط أى من أشواط السعى. اللباب مع شرح: ص ١٩٢ / الشامي: ج ٢ ص ١٨٦ .

(٦) د صفا او مروا تر منځ په سعي کي مخکي دوه زرغونه څلي (میلین اخضرین) وه چي دا مهال د دیوالونو پر ځای په چت کي لوړ زرغونه ګروپان لګیږي.

(٧) او ښځي به د زرغونه ګروپانو تر منځ عادي تګ کوي نه به ځغلي په حیاء کي به وي.

(٨) که یو سړی ددغه زرغونو ګروپانو په مابین کي ونه ځغلي او یا د صفا څخه تر مروا پوري وځغلي د سنت خلاف دی خو کوم شی نه پر لا زمیږي. (١)

(٩) د صفا څخه چي ولاړ سي و مروا ته، مروا ته به هغه د صفا پر طریقه پورته کیږي او هغه څه به وايي چي پر صفا يې ویل او قبلې ته به مخامخ ودریږي که څه هم کعبه شریفه نه معلومیږي. (٢)

---

(١) و لو ترک السعي بین المیلین او هرول في جمیع السعي فقد أساء و لاشيء علیه، اللباب مع الشرح: ص ١٩٢ / الشامي: ج ٢ص١٨٦.

(٢) ویفعل ما یفعل علی الصفا / الهندیة: ج ١ ص٢٢٦ / الهدایة مع الفتح: ج ٢ ص ٣٦١.

(۱۰) او ښځې دي دخلګو د هجوم په وخت کې پر صفا او مروا لوړ نه خیږي او دهغه زرغونو میلانو په مابین کې چابک تګ هم نه دی ورته روا. (۱)

(۱۱) سعي د صفا او مروا تر منځ په لوړو منزلو کې هم صحیح کیږي ځکه سعي د صفا او مروا د غونډیو تر منځ تګ او را تګ ته ویل کیږي که رش ډیر زیات وي پر مځکه باندي دصفا او مروا په سعي کې تکلیف وي نو دضرورت په وجه علمائي کرامو ددغه سعي دجواز حکم ور کړیدی او که ضرورت نه وي نو بیا به خامخا سعي پر مځکه کوي (۲)

(۱۲) د سعي شروع د صفا څخه واجب ده، او پر مروا باندي ختمیږي. (۳)

---

(۱) الفقه الحنفي في ثوب الجديد: ج ۱ ص ٤٧٢ / التاتارخانية: ج ۲ ص١٧٢ / غنية الناسک ص ٩٤

(۲) صدرت هيئة كبار العلماء فتوى بجواز السعي عند الحاجة فوق السقف الشيخ ابن المنيع ج۳ ص ۸۱ / ابحاث هيئة كبار العلماء ج ۱ ص ۱۵ / مجلة البحوث الاسلامية ج ۱ ص ۱۷۹ /

(۳) و تبداء بالصفا و تختم بالمروة / البحر الرائق: ج ۲ ص ۵۸۴.

(۱۲) او که د مروا څخه شروع وسي نو دغه شوط اعتبار نه لري نو دا واجب ده چي دغه شوط به تر هغه نورو شپږو شوطونو وروسته راګرځوي او که يې دغه شوط نه راوګرځوی نو دم پر لازميږي. (۱)

(۱۳) د صفا څخه تر مروا پوري او بيا بيرته د مروا څخه تر صفا پوري دا هر يو جلا - جلا شوط دی. (۲)

(۱۴) که د صفا او مروا سعي په حج يا عمره کي بې له عذره پاته سي دم پر واجب دی. (۳)

(۱۵) که د سعي څلور يا ډېر شوطونه بې له عذره پاته سي دم لازم دی او که تر څلور لږ شوطونه پاته سي بيا د هر شوط لپاره نيمه کاسه د غنمو صدقه لازمه ده. (٤)

---

(۱) فيجب أن يعيده بعد ستة من الصفا فلو لم يعد فعليه دم لترک واجب البداة بالصفا / غنية الناسك ص ۱۳۲ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۳۰۵۱.

(۲) والسعي من الصفا إلى المروة شوط و من المروة إلى الصفا شوط، وهو المختار / الهندية: ج ۱ ص ۲۲۷ / فتح القدير: ج ۲ ص ۳۶۲.

(۳) و إن ترک السعي فيما بين الصفا والمروة رأسا في حج و عمرة فعليه دم عندنا / المبسوط للسرخس: ج ۴ ص۵۸ غنية الناسك: ص ۲۷۷ / الهندية: ج ۱ ص ۲۴۷.

(٤) لکل شوط مسکينا نصف صاع من بر أو قيمته / فتح القدير: ج ۲ ص ۴۶۷ / اللباب: ص ۳۹۳.

(۱۲)که دحج سعي داختر تر ورځو وځنډول سي نو مکروه کار دی البته کوم شی نه پر لاز میږي.(۱)

(۱۷) دحج سعي دقارن لپاره تر طواف قدوم یا نفلي طواف وروسته تر طواف زیارت مخکي افضله ده او دافراد والا لپاره تر طواف زیارت وروسته افضله ده.(۲)

**یادونه** :د نیمي کاسې د غنمو اندازه یو کیلواو یو سل دوشپیته ګرامه (۱ کیلو، ۱۶۲ ګرامه) کیږي.(۳)

---

(۱) ولو اخر السعي عن ایام النحر ولو شهورا لاشئ علیه و یکره غنیة الناسک: ص ۲۷۸ / اللباب ص ۳۹۳.

(۲) الشامي: ج ۲ ص ۱۸۵/ اللباب ص ۲۰۷ / منحة الخالق علی البحر ج ۲ ص ۵۸۳.

(۳) مقدار الصاع عند الحنفیة الصاع = ۸ آرطال عراقیة، الرطل العراقي :۱۳۰ درهمًا فیکون الصاع ۱۰۴۰ درهمًا

الدرهم = ۱۴ قیراط، والقیراط = خمس حبات شعیر

الدرهم = (۱۴ قیراط × ۵ حبات شعیر = ۷۰ حبة شعیر) و تزن بالجرامات = ۲،۲۳ جراما تقریبًا

الصاع = (۲،۲۳ جرام × ۱۰۴۰ درهم = ۲۳۲۵ جرام) ۲،۳ کجم تقریبًا

(۱۶) که د عذر له کبله د صفا او مروا سعي ټوله یا یو څه پاته سي شی نه پرلازمیږي. (۱)

(۱۷) که څوک بې له عذره ټوله سعي پر سپرلۍ یا د بل شي په شا وکړي بېرته راګرځول غواړي که یې نه راوګرځوي دم پر لازم دی. (۲)

(۱۸) که د عذر له کبله یې د بل په شا یا په بایسکل یا بل د سپرتیا په شي کي سعي وکړي نو بیا هیڅ شی نه پر لازمیږي. (۳)

(۱۹) که څوک سعي وکړي خو د سعي څخه مخکي یې طواف نه وي کړی نو دغه سعي لره هیڅ اعتبار نه ورکول کیږي ځکه سعي د طواف څخه وروسته صحیح کیږي.

---

(۱) أما إن ترک واجبا لعذر فانه لا شيء علیه کما صرح به في البدائع: في ترک السعي أنه إن ترکه لعذر فلا شيء علیه، البحر الرائق: ج ۲ ص ۴۰ / البدائع: ج ۲ ص ۳۱۸ / الموسوعة الفقهیة: ج ۲۵ ص ۱۲.

(۲) و لو سعی راکبا من غیر عذر لزمه دم إن لم یعد، البحر الرائق: ج ۳ ص ۴۰ / الفقه علی المذاهب الاربع: ج ۱ ص ۵۹۵.

(۳) و کذلک إن فعله راکبا فان کان لعذر فلا شی علیه، المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۵۹ / الشامي: ج ۲ ص ۲۲۵.

(۲۰)د عمرې سعي په احرام کي واجب ده.(۱)

(۲۱) که د عمرې سعي په احرام کي ونه کړي بلکي تر سر خریلو وروسته يې وکړي يو دم پر لازم دی.(۲)

(۲۲) د عمرې د يوه واجب په پرېښولو سره دم واجبیږي.(۳)

(۲۳) که يو څوک د جنابت يا حيض په حالت کي سعي وکړي نو دغه سعي يې صحيح ده اما ګنهکار سو، ولي صفا او مروا خو پخوا تر مسجد حرام دباندي وه خو اوس په مسجد حرام کي داخله ده نو مسجد ته د جنابت ياحيض په حالت کي بې له ضرورته داخلېدل حرام دي نو بايد په پاکي سره ور داخل سي.(۴)

(۲۴) په سعي کي خبري کول يا د خبرو لپاره درېدل مکروه کار دی.(۵)

---

(۱) غنية الناسك: ص ۱۳۲ / لباب المناسك: ص ۱۹۳.

(۲) الايقاع بين السعي والحلق في العمرة فيلزمه دم لترک الترتيب / غنية الناسك: ص ۱۳۴ / لباب مع الشرح: ص ۱۹۷.

(۳) معلم الحجاج:

(۴) و منها أنه يحرم عليهما و على الجنب الدخول في المسجد / الهندية: ج ۱ ص ۳۸ / الشامي: ج ۲ ص ۱۲۶.

(۵)مكروهات السعي البيع و الشراء والحديث / غنية الناسك ص ۱۳۴ / اللباب ص ۱۹۷.

(۲۵) که یو څوک د سعي په شوط کې د مابين څخه د لمانځه يا اوداسه لپاره ووځي نو کله چې بيرته راسي دغه شوط له سره راګرځول نه غواړي د هغه ځای څخه دې يې پوره کړي. (۱)

(۲۶) ځيني خلك تر هر نفلي طواف وروسته په کالو کې سعي کوي چې ته ورته ووايې چې حاجي صاحب تر نفلي طواف وروسته سعي نسته دی په جواب کې تا ته داسي وايي: ته يې اوس ماته رانبيې؟ زه د کوم ځای څخه راغلی يم، نو دا صرف ناپوهي ده بايد دی ځان پوه کړياو دحج او عمرې دسعي يي څخه ماسيوا بله نفلي سعي نه کيږي. (۲)

(۲۷) که يو چا ته دسعی په ما بين کې شک پيد اسو نو په هغه لږ دی عمل وکړي مثلاً: دده شک وي چې پنځه دي که څلور نو څلور دي يې حساب کړي او که دسعي تر ختمېدلو وروسته شک ورته پيداسو، بيا نو همدغه شک اعتبار نه لري شی نسته. (۳)

---

(۱) فتح القدير ج ۲ ص ۳۸۹ / الشامي ج ۲ ص ۱۸۲.
(۲) الفقه الحنفي و ادلته ج ۱ ص۴۳۷/ غنية الناسک ص ۱۳۷.

(۳) ولو شک في عدد أشواط السعی أخذ بالاقل كما قالوا في الطواف ، غنية الناسک ص ۱۳۰.الفقه الاسلامي وأدلته ج ۳ ص ۲۲۲۹ / وأما إذا شک بعد الفراغ فلا شی عليه غنية الناسک ص۱۳۱.

# د حلق (سر خرېيل يا کوچنی کول) بيان او مسائل

(۱) محرم چي کله د احرام څخه د وتلو وخت وي ټول سر يا د سر څلورمه حصه چي وخرېي او يا يې کوچني کړي د احرام څخه وځي، او ښځي يوازي قصر کولای سي، يعني د ګوتي د بند په اندازه به د ټول سر څخه د ورېښتانو څوکي غچي کړي بيا د احرام څخه وځي، که ښځي د څلورمي برخي څخه کم ورېښتان غچي کړه نو بيا د احرام څخه نسي وتلای او د خپل خاوند سره يو ځای کېدل ورته حرام دي او د ښځي سر خريل حرام دي.[۱]

(۲) د احرام څخه د وتلو لپاره د ورېښتانو د کوچني کولو په اندازه کي د نارينه او ښځي فرق نسته هر يو به د سر د څلورمي برخي ورېښتان د ګوتي د بند په اندازه يا يو څه ډېر غچي کوي.[۲]

---

(۱) معلم الحجاج: ص ۲۱۹ و شرط الخروج منه أی من إحرام العمرة و الحج في الجملة الحلق أو التقصير قدر ربع شعر الراس في وقته / اللباب مع الشرح ص ۱۰۴ / غنية الناسك: ص ۶۶.

(۲) الهندية: ج ۱ ص ۲۳۱ / البحر الرائق: ج ۲ ص ۶۰۶ / البدائع: ج ۲ ص ۳۳۰

(۳) عمرې والا چي دعمرې تر طواف وروسته سعي وکړي نو سر به وخريي نو که د سعي تر مخه سر وخريي د احرام څخه وځي البته دم پر لازم دی. (۱)

(۴) نارينه محرم ته د احرام څخه دوتلو لپاره په سرخريلواولنډولو کي اختيار سته که سر خريي او که يې غڅي کوي البته د سر خريل ورته افضل دي دهر خريل سوي ويښته په بدل کي الله پاک جَلَّ جَلَالُهُ يوه نيکي ورکوي او يوه ګناه يې معافوي. (۲)

(۵) که د محرم د سر ويښتان د ګوتي د بند تر اندازې کوچني وي نو بيا له احرام څخه بې له سر خريلو نه وځي. (۳)

(۶) که د محرم په سر کي دانې وي سر نسي خريلای او هم يې د سر ويښتان د ګوتي د بند تر اندازې کوچني وي د دغه محرم څخه دواړه ساقط دي

---

(۱) غنية الناسك: ص ۱۷۵ / اللباب: ص ۲۵۴.

(۲) غنية الناسك: ص ۱۷۳ / البدائع: ج ۲ ص ۳۲۸. النبي صلى الله عليه وسلم: في حجة الوداع دعا للمحلقين ثلاثا و للمقصرين مرة واحدة، رواه مسلم:.

(۳) اللباب مع الشرح: ص ۲۵۳ / الشامي: ج۲ ص ۱۹۷ / غنية الناسك: ص ۱۷۵.

بې له سر خرېيلو او کوچني کولو له احرام څخه وځي او کوم شی هم نه پر لازمیږي.[1]

(۷) که د محرم پر سر وربښتان نه وي نو صرف د څلورمې برخې تېرول پر سر باندي واجب دي.[2]

(۸) که د حج یا عمرې محرم سر د حرم دحدودو څخه دباندي وخرېيي د احرام څخه وځي البته دم پر لازم دی.[3]

(۹) که محرم د احرام ټول افعال اداء کړي وي او په دغه وخت کي خپل یا د بل محرم سر وخرېيې هیڅ شی نه پر لازمیږي.[4]

---

(۱) غنية الناسك: ص ۱۷۵ / التاتارخانية: ج ۲ ص ۲۲۰ / المحيط البرهاني: ج ۳ ص ۸۱.

(۲) الشامي: ج ۲ ص ۱۹۷ / الهندية: ج ۱ ص ۲۳۱.

(۳) أی يجب الدم لو حلق للحج أو العمرة في الحل. الشامي: ج ۲ ص ۲۲۵ / الهندية: ج۱ ص۲٤۷ / فتاوي حقانية: ج ٤ ص ۳۷۳.

(٤) لباب المناسك: ص ۲۵۳ / شرح النقاية لملا علي القاري: ج ۲ ص ۲۹۱.

(۱۰) د محرم لپاره تر سر خریلو وروسته برېتونه او نوکان کوچني کول مستحب دي، که محرم تر سر خریلو مخکې بغلونه وخریل، که دواړه بغلونه او یا یو یې وخریي دم پر لازم دی.(۱)

(۱۱) د محرم لپاره د وربښتانو کښل، غچي کول او خریل یا په دواء لیري کول فرق نه لري د ټولو یو حکم دی.(۲)

(۱۲) که محرم د پزي یا د ږیري وربښتان وکاږي د هر وربښته په مقابل کي به د یوه لاس یوه لپه غنم صدقه کوي.(۳)

(۱۳) او که محرم د ږیري څلورمه برخه وخریل نو دم پر لازم دی.(۴)

(۱۴) د سترګو څخه دباڼوګانو په کښولو هیڅ شی نه لازمیږي.(۵)

---

(۱) الجواب یجب علیه الدم، فتاوی السعدیة: ج ۱ ص ۵۲ مؤلف مولانا المرحوم المبرورالسید أسعد بن أبي بکر أفندي الحنفي رحمه الله تعالی / فتاوی رحیمیة: ج ۸ ص ۹۵.

(۲) الهندیة: ج ۱ ص ۲۴۴ / الشامي: ج ۲ ص ۲۲۱ / غنیة الناسك: ص ۲۵۷.

(۳) الهندیة: ج۱ ص ۲۴۳ / البحر الرائق: ج ۳ ص۱۶.

(۴) التاتارخانیة: ج ۲ ص۱۹۲ / ملا علي القاري: ص ۳۲ / البحر الرائق: ج ۳ ص ۸.

(۵) معلم الحجاج: ص ۲۴۹.

(**۱۵**) که محرم د سر یا د ږیرې څلورمه حصه لنډه کړه دم پر لازم دی. [۱]

(**۱۲**) ځینې خلک ددې لپاره چې د سر ښکلا له لاسه ور نه کړي نو په خپله یا په بل ملګري یا په نایي دسرله ځینو برخو څخه لږ - لږ وریښتان غڅي کړي او ځان له احرام څخه وتلی بولي، حال دا چې دا طریقه صحیح نه ده که څوک په داسې حالت کې پوره ورځ یا شپه تېره کړي دم پر واجبیږي. [۲]

---

(۱) التاتارخانية: ج۲ ص۱۹۲ / نهر: ج ۲ ص۱۱۹.

(۲) معلم الحجاج: ص ۲۱۹.

# د خنثیٰ (نرښځي) د احرام بیان

نرښځی یعني چي نر او ښځه یې نه وي معلوم په ټولو احکامو کي د ښځي غوندي دی د پردي نارینه یا ښځینه سره یې اوسېدل روا نه دي.[1]

نرښځی په ځینو مسائلوکي د ښځي سره فرق لري ښځه سر نسي خریلای البته نرښځی به سر خریي.[2]

## مسجد تنعیم

دا د مسجد عائشه رضي الله عنها په نوم سره مشهوره دی، تنعیم ددې ځای نوم دی کوم چي د حرم له حدودو څخه وتلی دی او له دې ځایه نبي کریم صلی الله علیه وسلم په حجة الوداع کي و حضرت عائشه رضي الله عنها ته د عمرې حکم کړی ؤ. ځکه له دې ځایه عمره کول افضل دي.

[1] معلم الحجاج: ص ۱۰۲.

[2] فتح المعین: ج ۱ ص ۴۹۶.

## مسجد جعرانه

مسجد جعرانه هم د حرم د حدودو څخه دی ځکه نبي کريم صلی الله عليه وسلم له همدې ځايه څخه دعمرې لپاره احرام تړلی دی .

له دې ځايه عمره کولو ته په عامه اصطلاح کي غټه عمره او له تنعيم څخه عمره کولو ته کوچنۍ عمره ويل کيږي، ددې دواړو مقاماتو د مسافې په لحاظ يې دا نومونه ايښودل سوي دي ليکن کوچنۍ او غټه عمره حقيقتًا نسته، له دواړو ځايونو (جعرانه او تنعيم) څخه د عمرې په اجر او ثواب کي هيڅ فرق نسته.(١)

دجعرانې مسجد دمکې مکرمې دشمال شرق طرفته د طائف پر لار دمسجد الحرام څخه (٢٢) کيلو متره ليري واقع دی.

## د ښځو اړوند مسائل

(١) ښځه د خپل خاوند او د هغه محرم سره حج او عمرې ته تللای سي چي نکاح يې په هيڅ وخت کي نه ور سره صحيح کيږي، دغه خاوند او محرم به امين او عاقل وي، بالغ به وي، فاسق او بې باکه انسان به نه

(١) دحج او عمرې مسئلې: ص ٤٢٥وص ٤٢٦ . مؤلف مولنا محمد رفعت قاسمي حفظه الله.

وي، د ښځي لپاره چي د حج او عمرې په سفر کي خاوند يا محرم لازم بلل سوی دي په دغه کي ځوانه او زړه ښځه فرق نه لري د دواړو لپاره لازم دی. (۱)

(۲) ښځه د عدې په وخت کي حج او عمرې ته نسي تللای که د طلاق عده وي او که د وفات عده وي فرق نه لري،البته که دعدې په وخت کي حج يا عمرې ته ولاړه نو په دې سفر کولو سره ګنهګاره ده. (۲)

(۳) که چيري ښځه د احرام تړلو په وخت کي په حيض کي وي نو غسل به کوي ځکه د احرام لپاره غسل سنت دی. (۳)

(۴)ښځه په احرام کي ګنډلي کالي اغوستلای سي يعني ښځه به په احرام کي خپلي عادي او ګنډلي جامې اغوندي لکه پرتوګ، قميص، انګيا او

---

(۱) والمحرم في حق المرأة شرط شابة كانت أو عجوزة إذا كان بينها و بين مكة مسيرة ثلاثة أيام / المحيط البرهاني: ج ۳ ص ۳۹۴ / البدائع: ج ۱ ص۳۰۰ / الهندية: ج ۱ ص ۲۱۹ / التاتارخانية: ج ۲ ص ۱۴۹ / الشامي: ج ۲ ص ۱۵۸ .قال ابن حجررحمه الله،وقوله عليه السلام لا تسافر المرأة إلامع محرم فتح الباري: ج٤ ص٧٧

(۲) وكذلک يحرم عليها الخروج إلى الحج أو العمرة إذا كانت معتدة عدة طلاق أو وفات . الفقه على المذاهب الاربعة: ج۱ ص ۵۷۳ / البدائع: ج۲ ص ۳۰۱/ الفقه الحنفي في ثوبه الجديد : ج۱ ص ٤٧٢

(۳) البدائع: ج ۲ ص ۳۳۴ / الشامي: ج ۲ ص۱۷۰ / الموسوعة الفقهية: ج ۱۸ ص ۳۱۹.

او داسي نور.........

(۵) ښځه به سر پټوي بوټونه او موزې په پښو کولای سي او دستکلې هم په لاس کولای سي. (۱)

(۶) ښځه د احرام په حالت کي که څوک نه وي مخ به لڅ کړي البته که غیرمحرم څوک وي هم به مخ په عادي ډول نه پټوي، ځکه د احنافو مذهب دا دی چي د ښځي احرام په مخ کي دی او که بېګانه خلک وي نو ځوانانې او مخ پوټی ښځي به د ستر لپاره د مخ څخه لیري پر مخ ټوکر را ځوړند کړي، د پیک په واسطه البته دا ټوکر به یې د مخ څخه لیري وي پر مخ به یې موښتی نه وي، دغه ته سَدَلْ وایي.

د پردیو خلګو په مخ کي ښځي ته مخ ښکاره کول منع دي او په داسي طریقه سره مخ پټول واجب دي نو به یې دحیاءاوبه دسترګوڅخه نه وزي.(۲)

(۷)که ښځه بې له ضرورته په احرام کي مخ پټ کړي که پوره ورځ یا پوره

---

(۱) الزيلعي: ج ۲ ص ۳۲۳ / فتح القدير: ج ۲ ص ۴۰۵ / / المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۳۹.
البته ددستکلو نه په لاس کول بهتر دي .الشامي: ج۲ ص ۲۰۶ البدائع: ج۲ ص۴۱۰

(۲) ذهب الفقهاء الى ان احرام المراة في وجهها فلا يجوز لها ستر وجهها /.الموسوعة الفقهية: ج ۳۵ ص ۲۰۲ المبسوط للسرخسي: ج۴ ص ۳۹ / الشامي: ج ۲ ص ۲۰۵ .مناسک الملا علي قاري: ص ۷۸

شپه تول مخ یا د مخ څلورمه حصه پټه کړي دم پر لازم دی او که تر ورځ کم وي بیا نیمه کاسه غنم صدقه پر لازمه ده او که داسي وکړي چي مخ پټ کړي او دستي یې بیرته لڅ کړي بیا د هر وار په پټېدلو سره یو مُټ د غنمو صدقه پر لازمه ده.(۱)

الشیخ ملا عبدالغني آخند په خپل مناسک کي لیکلي دي: که ښځه مخ پټ کړي او تر یو ساعت کم وي هیڅ شی نه پر لازمیږي او که یو ساعت پوره وو دولسمه برخه د پسه د قیمت به خیراتوي.(۲)

(۸) ښځي ته په احرام کي د خولۍ او پزي پوټېده ممنوع دي او په ځینو ښځو به نه خطاوزي که پوره ورځ یا شپه یې پټه کړي دم پر لازم دی او که تر ورځ کم وي بیا نیمه کاسه د غنمو صدقه پر لازمه ده.(۳)

(۹) دغه حکم چي ښځي به مخ نه پټوي دغه د احرام حکم دی د حرم حکم نه دی بلکي داحرام ترختمېدلو وروسته به مخ پټوي لکه په نورو وختو کي.(٤)

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۲ ص ۱۸۲ / غنية الناسك ص ۲۵۵.

(۲) مناسك الحج الجديد: ص ۹۲.

(۳) غنية الناسك: ص ۲۵۵ / إرشاد الساري: ص ۲۴۳.

(٤) الموسوعة الفقهية: ج ٤۲ ص ۳٦۵ / الشامي: ج ۱ ص ۲۹۹.

(۱۰) ښځه به تلبیه په داسي طریقه سره وایي چي خپله یې واوري او په بل به یې نه اوري.[۱]

(۱۱) ښځه به حجر اسود او رکن یماني کي که ګڼه ګوڼه وي یعني د خلګو سره د بدن د مښلېدلو خطر وي نه به یې مچوي لکه په اوسني وخت کي یوه ته به هم نه ورځي.[۲]

(۱۲) ښځه به په طواف کي رمل یعني د اوږو ښورول نه کوي.[۳]

(۱۳) ښځه به د طواف لمونځ د مقام ابراهیم سره که د خلګو ګڼه ګوڼه وي نه به یې کوي بل ځای دي یې وکړي.[٤]

(۱۴) د ښځي لپاره د ګڼي ګوڼي په وخت کي د صفا سرته لوړه پورته کېدل صحیح نه دي.[٥]

---

(۱) ولا ترفع صوتها بالتلبية لاجماع العلماء على ذلک / الهندية: ج۱ ص ۳۳۵ / غنية الناسك ص ۹۴ الزيلعي: ج ۲ ص ۳۲۳.

(۲) الهداية مع الفتح: ج۲ ص ۴۰۵ / البحر الرائق: ج ۲ ص ۶۲۳.

(۳) و لا ترمل المراة /الفقه الاسلامي و أدلته: ج ۳ ص ۲۲۲۷ / الشامي: ج ۲ ص ۲۰۶.

(٤) و كذلک لا تصلي في مقام إبراهيم في الزحام / الفقه الحنفي في ثوبه الجديد: ج۱ ص۴۷۲ / الشامي: ج ۲ ص ۲۰۶ / اللباب: ص ۱۲۸.

(٥) غنية الناسك: ص ۹۴ / التاتارخانية: ج ۲ ص ۱۷۲.

(۱۵) د ښځې لپاره همېشه دا افضل دي چي د کعبې شريفې څخه لېري طواف وکړي ځکه د ګڼې ګوڼې په وخت کي د نارينو سره د بدن مښلېدلو خطره وي او دغه د ښځې لپاره ناروا عمل دی.[۱]

(۱۶) د ښځې لپاره په احرام کي زېورات استعمالول روا دي.[۲]

(۱۷) که يو ښځه د حج يا عمرې د افعالو د اداء کولو لپاره د حيض د بندېدو درمل وخوري يعني د دواء په ذريعه حيض بند کړي دغه ښځه پاکه بلل کيږي لمونځ، روژه او طواف يې صحيح دي تر هغه وخت پوري چي وينه يې ښکاره کيږي.[۳]

(۱۸) ښځې ته دا مناسبه ده چي د احرام په حال کي يو کوچنی دسمال وتړي چي وربېښتان يې ښکاره نسي د دغسي دسمال تړل د ستر د وجوب لپاره دي، نه د احرام لپاره ځکه چي د ښځې په سر کي احرام نسته که

---

(۱) اللباب: ص ۱۷۷ / مجامع المناسك: ص ۱۹۵ / فتح القدير: ج ۲ ص ۳۸۹.

(۲) البدائع: ج ۲ ص ۴۱۰ / مجامع المناسك: ص ۱۴۶.

(۳) الهندية: ج ۱ ص ۳۸ / التاتارخانية: ج ۱ ص ۲۰۳ / عمدة المناسك: ص ۶۰۱.

ښځه فرضاً سر لڅ پرېږدي کم شی نه پر لا زمیږي، دسمال تړل د پردي نارینه په وړاندي واجب دی او سر لڅول ګناه ده د عمرې په احرام اړه نه لري. (۱)

(۱۹) ځیني ښځي د احرام په حالت کي په اودس کي د سر مسح پر پوړني او یا پر هغه ټوکر باندي کوي چي په احرام کي یې پر سر باندي تړلی دی یعني د لاسو اوبه یې سرته نه رسیږي، دغه اودس یې نه صحیح کیږي ځکه په اوداسه کي د سر مسح فرض ده، نو تر دغه اودس وروسته چي هر عمل کوي که لمونځ وي، که طواف وي او که سعي وي هغه داسي دي لکه بې اوداسه چي یې کړی وي چي د هر یوه حکم بیان سوی دی. (۲)

(۲۰) او ځیني ښځي په طواف کي د نارینه وو په منځ کي رواني وي او ځیني ښځي پر حجر اسود باندي چي ګڼه ګوڼه وي په هغه هم ور ګډېږي سي ځیني ښځي بیا دمسجدالحرام په لمانځه کي د امام سره په جماعت

---

(۱) معلم الحجاج: ص۹۹ / مؤلف مولانا مفتي سعید أحمد پالنپوري رحمه الله

(۲) ولا یجوز مسح المراة علی خمارها / البدائع: ج ۲ ص ۷۱ / الهندیة: ج ۱ص ۶ / الموسوعة الفقهیة: ج ۳۷ ص ۲۵۹.

کي وي پر هغه خپلو خاصو ځايو کي نه دريږي چي د مسجد الحرام د اداري مسؤلينو ورته ټاکلي دي د نارينه وو تر څنګ ولاړي وي داسي لمونځ بلا فايدې دی، ځکه چي د کعبې شريفي امام د داسي ښځو د لمانځه نيت نه کوي او که امام دداسي ښځو نيت په لمانځه کي هم وکړي نو د ټولو خلګو لمونځ فاسديږي، نو بايد په داسي طريقه سره لمونځ و نه سي او که يې وکړي نو بايد بېرته يې راوګرځوي، دا به ووايم چي نيکي بربادګناه لا زم، چي په ناخبرتيا او ناپوهي ځان مه خلاصوئ بايد له داسي اختلاط څخه زموږ خوندي ځان وساتي.

## چو کفر از کعبه خېزد کجا ماند مسلماني!

(۲۱) که د ښځي پر نوکانو باندي هغه رنګ وي چی اوبه منع کوي د دغه رنګ سره اودس او غسل نه صحيح کيږي خو د رنګ ليري کول لا زم دي که ددغه رنګ د استعمال څخه وروسته د جنابت يا حيض څخه د پاکېدلو غسل او اودس وکړي نو غسل او اودس يې نه صحيح کيږي اوس نو چي تر اودس او غسل وروسته يې کوم طواف او سعي کړي وي هغه د جنابت يا حيض يا بې اودسۍ په حال کي بلل کيږي چي حکم

یې ذکر سوی دی.(۱)

(۲۲) که ښځه په احرام کي پر خپل یوه لاس یا دواړو لاسو باندي نوکریځي کښېږدي دم پر لازم دی، خو په دې شرط چي پر دواړو لاسو به یې په یوه مجلس کي نکریزي ایښي وي، خو که یې پر یوه لاس په یوه مجلس کي ایښي وې او پر بل لاس یې په بل مجلس کي ایښي وې بیا دوه دمه پر لازم دي.(۲)

(۲۳)که ښځي ته د عمرې د احرام تر تړلو وروسته حیض ورسي نو تر هغه وخت پوره به انتظار وکړي چي حیض یې ختمیږي او بیا به خپله عمره وکړي او هیڅ شی نه پر لازمیږي، او که عمره پرېږدي احرام خلاصوي نو وروسته به ددغه عمرې قضاء راوړي او یو دم هم پر لازم دی.(۳)

(۲۴)که ښځي ته د طواف په مابین کي حیض پیدا سي نو طواف به پر همدغه ځای باندي پرېږدي او دستي به د مسجد الحرام څخه وځي د

---

(۱) یمنع وصول الماء إلی الاظافیر فلا یصح الخ / ...الفقه الحنفي في ثوبه الجدید : ج ۱:ص ۴۹

الفقه الاسلامي و أدلته: ج ۱ ص۳۹۱ / الهندیة: ج ۱ ص ۴

(۲) المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص ۱۳۷ / غنیة الناسك: ص ۲۴۵.

(۳) الفقه الاسلامي: ج ۳ ص ۲۳۶۴ / إعلاء السنن: ج ۷ ص ۳۳۷۶.

حیض تر ختمېدلو پورې به انتظار کوي او هر کله چې د حیض څخه پاکه سي بیا به خپل طواف وکړي.(١)

(٢٥) ښځې ته د حیض او نفاس څخه ماسېوا د مرض د وینو سره طواف کول جائز دي البته د مسجد د پاکۍ لحاظ پر لازم دی.(٢)

٢(٢) ښځه د حیض او نفاس په حالت کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم زیارت ته نسي ورتللای ځکه هغه په مسجد کې دی.(٣)

(٢٧) حائضې ښځې ته دعاء کول، ذکر کول، د آذان جواب ورکول ټول ورته روا دي.(٤)

## د ښځو او نارینوو په لمانځه کې فرق

(١) ښځه دې د تکبیر تحریمه ویلو په وخت کې دواړه لاسونه تر وږو

(١) البحر الرائق: ج ١ ص ٣٤١ / الموسوعة الفقهية: ج ٣٧ ص ٢١٨ غنية الناسك: ص ١٢٢.

(٢) الشامي: ج ١ ص ٢١٨ / الموسوعة الفقهية: ج ٣ ص ٢٠٩.

(٣) و يحرم الحيض عليها دخول المسجد / الفقه الاسلامي وأدلته: ج ١ص ١٠٣ / البحر الرائق: ج ١ ص ٣٣٨.

(٤) الهندية: ج ١ ص٣٨ / السراجية: ص ٨ / البحر الرائق: ج١ ص ٣٤٧.

پوري پورته کړي مګر لاسونه دي تر پوړني دباندي نه راباسي.[1]

(۲) ښځه دي پر سينه لاسونه وتړي او د راسته لاس ورغوي دي د چپه لاس د ورغوي پر شا کښېږدي، د نارينوو په رقم دي يې په خمچه او بتهه ګوته د لاس بند نه نيسي.[2]

(۳) په رکوع کي دي لږ کښته سي او د دواړو لاسو ګوتي دي بندي پر ځنګنو کښېږدي، ګوتي دي نه خلاصوي او دواړه بازوګان دي د بغلو سره ښه موښتي ونيسي او د دواړو پښو بجلکي دي ښه سره ومښلوي.[3]

(۴) ښځه به په سجده کي پښې نه درولي بلکي راسته خوا ته دې وباسي او ښه ورټوله او موښتې سجده دي وکړي او نس دي له ورنو سره او بازوګان دي د بغلو سره وموښلوي او ځنګلي دي پر مځکه کښېږدي.[4]

(۵) په قعده (ناسته) کي دي پر چپه خوا کښېني او دواړي پښې دي راسته خوا ته وباسي او پر ورنو دي دواړه لاسونه کښېږدي او د لاسو

---

(۱) حصن حصين: ص ۲۲۴.

(۲) مرقات: ج: ۳ صـ: ۳۵.

(۳) طحطاوي: شامي: ج ۲ ص ۱۸۸.

(٤) بهشتي زيور دوهمه حصه: ص ۱۷ / الشامي: ج ۲ ص ۲۱۱.

ګوتې دې ښه موښتې ونیسي. [1]

﴿رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّکَ أَنْتَ السَّمِيْعُ العَلِيْمُ وَ تُبْ عَلَيْنَا إِنَّکَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ﴾

ژباړه:اې زموږ ربه زموږ څخه دا خدمت قبول کړه،ته د هر څه اوریدونکی او په ټولو شیانو پوهېدونکی یې اوزموږ توبه قبوله کړه ته زیات توبه قبلونکی او رحم کونکی یې.

(۱) طحطاوي: شامي: ج ۲ ص ۲۱۱.

# د مختلفو مسئلو بیان

۱- که څوک دحج یا دعمرې په مسائلونه وو خبر په سپکه سترګه مه ورته ګورئ په نرمي او پراخ تندي سره یې وروښیاست!

۲- د مسجد الحرام څخه دباندي طواف جائز نه دی.

۳- په طواف کي نامحرمو ښځواوهلکانو ته باید ونه کتل سي او بې ګټې خبري هم باید ونه سي.

۴- که د ناروغ یامعذورسړي څخه پیسې واخستل سي اوطواف په وکړي نو دا کار روا دی.

۵- په حرمینو شریفینو کي د بدن او جامو نظافت او صفائي ډېره کوئ د خیرنوکالو،صدرۍ،رخچیني او لنګوټې سره مه ګرځئ چي خیرن احرام دي پرسرتړلی وي لکه قصاب البته لنګوټه تړل سنت ده نبي کریم صلی الله علیه وسلم دمکې شریفي دفتح پر مهال لنګوټه تړلې وه اوتر لنګوټې لاندي رخچینه پرسرکول او توره لنګوټه او شمله ایله کول هم سنت دي.[۱]

---

(۱) مرقات: ج ۸ ص۱۲۱۵النسائي: ج ۲ ص ۲۹۹

﴿ يَٰبَنِي ءَادَمَ خُذُواْ زِينَتَكُمۡ عِندَ كُلِّ مَسۡجِدٖ ﴾

ژباړه: اې د ادم اولادې دهرعبادت په وخت کښې په خپله ښکلا سينګار واوسئ! [1]

٦- د مسجد الحرام نوې برخه د پخوانۍ حصې سره په ثواب کې برابره ده هيڅ فرق نه لري. [2]

٧- په حرمينو شريفينو کې د مازديګر لمونځ د دوچندۍ څخه د مخه اداء کيږي نو د امام صاحب د مذهب خلګ بايد په دغه جماعت کې شرکت وکړي او يواځې دې لمونځ نه کوي. [3]

٨- که يو څوک د جنازې په لمانځه يا په بل لمانځه کې د امام په طرف کې کعبې شريفې ته تر امام نژدې سي د دغه سړي لمونځ نه صحيح کيږي. [4]

---

(١) سُورَةُ الأعرَاف:(٣١)

(٢) غنية الناسك: ص ١٤٣ / الشامي: ج٢ ص ٢٠٣.

(٣) الشامي: ج ١ ص ٢٦٤ / القواعد الفقهية: ص ٥١١ / الدرالمختار مع الشامي: ج ١ ص ٢١١.

(٤) شرح منية: ص ٦١٦ / الهندية: ج ١ ص ٦٥ / الموسوعة الفقهية: ج ٣٧ ص ٢٤٠.

۹- بعضي عمره کونکي یا حج کونکي دمازدیګر لمونځ په جماعت سره وکړي او بیا روضي شریفي ته ځي او هلته بیا نفلي لمونځ کوي زموږ په مذهب کي د مازدیګر دفرضي لمانځه وروسته نفلي لمونځ کول مکروه دي باید ونه سي.

نو که څوک په روضه شریفه کي دمازدیګرپه وخت کي نفلي لمونځ کوي ښه صورت یې دادی چي خپل فرضي لمونځ څه وځنډوي او په روضه شریفه کي دي نفلي لمونځ وکړي وروسته دي بیا هغه خپل فرضي لمونځ اداء کړي. (۱)

---

(۱) قال الحصكفي: وكره النفل بعد صلاة الفجر و صلاة العصر ،لايكره قضاء فائتة و كذا بعد طلوع الفجر سوى سنته الخ

فال ابن العابدين: قوله كره الكراهة هنا تحريمية كما صرح به فى الحلبة ، وقوله بعد صلاة الفجر و العصر اي الى ما قبل الطلوع والتغير وقال الحصكفي: وكره تحريما ،صلاة مطلقا ولو قضاء او واجبة او نفلا مع شروق و استواء وغروب .

الدر المختار مع رد المحتار ج ۱ ص ۳۷۰ وص ۳۸٤ / و كذا فى الفتاوى الهندية ج ۱ ص ۱۰۹ كتاب الصلاة: الاوقات التي تكره فيها الصلاة

۱۰- په مسجد الحرام او مسجد نبوي شریف کې زیات وختونه تر فرض لمانځه وروسته د جنازې لمونځ وي کله چې مو د امام سره فرض لمونځ و کړی د لږ وخت لپاره په تسبیحاتو ویلو ځان بوخت کړی او سمدستي سنتو ته مه ولاړیږئ، که چیري د جنازې لمونځ وي هغه وکړئ او بیا وروسته خپل سنت لمونځ اداء کړئ، داحنافو له اصولو څخه یو اصل دا دی چې فرض کفایي د لیدلو او حضور په صورت کې فرض عین ګرځي.

۱۱- د مسجد الحرام یو لمونځ بې له جماعت څخه په یو لك درجې ثواب لري او که په جماعت باندې اداء سي نو یو لمونځ په اوه ویشت (۲۷) لکه درجې ثواب لري.(۱)

۱۲- په مکه مکرمه کې هر قسم عبادات لکه روژه، تلاوت، ذکر، صدقه، او داسې نور یعني هر عبادت او نیکي چې وي په یو لك درجې ثواب لري.(۲)

---

(۱) إن الصلوة في المسجد الحرام أفضل من مائة الف صلوة فيما سواه من المساجد / الموسوعة الفقهية: ج ۳۷ ص ۲۳۸ / الشامي: ج ۲ ص ۲۰۳.

(۲) مجامع المناسك: ص ۶۲۶ / غنية الناسك: ص ۱۴۳.

۱۳- که یو څوک په مکه مکرمه کي یو قضایي لمونځ وکړي په دغه لمانځه باندي يې د يوه لمانځه غاړي خلاصیږي. [۱]

۱٤- په مسجد الحرام کي طواف کوونکي دي د لمونځ کوونکي مخته د سجدې پر ځای نه تېریږي او که دسجدې د ځای څخه لیري وي نو تېرېدل ور ته پروا نه کوي . [۲]

۱۵- هغه څوک چي کعبه شریفه ویني هغه ته د لمانځه د ولاړي په وخت کي افضل داده چي د سجدې ځای ته وګوري. [۳]

۱٦- په وتر لمانځه کي د حنفي مذهب والا اقتداء کول په هغه امام پسي چي پر دوه رکعته باندي سلام ګرځوي نه ده صحيح دغه وتر به دوهم وار راګرځوي. [٤]

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۳۷ ص ۲۳۸ / غنية الناسك: ص ۱۴۲.

(۲) رد المحتار: ج ۲ ص ۱۷۲ / الشامي: ج۱ ص ٤۷۰ .

(۳) الفقه الحنفي في ثوبه الجديد: ج ۱ ص۲۲۹ / الشامي: ج ۱ ص ۳۵۳ / الطحطاوي على مراقي الفلاح :ص ۲۷۷ .

(٤) البحر: ج ۲ ص ۷۰ / الشامي: ج ۱ ص ۴۹۴ / فتح القدير: ج ۱ ص ۳۸۱.

۱۷- کله کله په مسجد الحرام او مسجد نبوي کي امام په لمانځه کي د سجدې آية ووايي نو سجدې ته ولاړ سي او ځيني خلک په دغه سجده نسي پوه او رکوع ته ولاړ سي او دغه د تلاوت سجده ونه کړي نو ددغه خلګو لمونځ صحيح دی اوددغه سجدې د تلاوت قضاء پر همدغه خلګو نسته که په دغه رکوع کي پوه سي چي امام د تلاوت سجدې ته ولاړی نو دغه رکوع دي پرېږدي او د امام سره دي د تلاوت سجده وکړي.(۱)

۱۸- په ټوله دنيا کي تحية المسجد د مسجد لمونځ دی ليکن په مکه مکرمه کي تحية المسجد د مسجد الحرام طواف دی، هغه څوک چي د طواف کولو نيت لري او هغه څوک چي دطواف کولو نيت نه لري،د نورو مسجدو په شان به دلته هم دوه رکعته نفل وکړي، که مکروه وخت نه وي.(۲)

---

(۱) التاتارخانية على هامش الهندية: ج۱ ص ۶۰ / الشامي: ج۱ ص ۵۷۰ / الهندية: ج ۱ ص ۱۳۴ البحر: ج ۲ ص ۲۱۵.

(۲) الفقه الحنفي وأدلته: ج ۱ ص ۴۲۷ / غنية الناسك: ص ۹۹.

۱۹-د حج او عمرې په سفر کي سنت کول که د تلګ په حالت کي وو او

تلوار يې وي نو نه کول يې ښه دي، او که د تلګ په حالت کي تلواري نه وو لکه يو ځای چي مثلا شپه يا ورځ تېروي نو بيا يې کول ښه دي.(۱)

۲۰- په حرم شريف کي که د يو چا چپلکي ورکي سي نو د بل مسلمان ورور چپلکي په پښو کول نه دي ورته روا، احتياط دا دی چي نه به يې په پښو کوي.(۲)

۲۱- په مسجدحرام کي بعضي خلګ د شا په صفونو کي دريږي سره ددې چي د مخ په صفونو کي ځای وي نو دغه لمونځ مکروه دی، که څه هم دا وخت امام پر رکوع وي او رکعت ورڅخه تېريږي.(۳)

---

(۱) الفقه الاسلامي و أدلته: ج ۲ ص ۱۳۷۲ / الشامي: ج۱ ص ۵۸۵.

(۲) الشامي: ج ۳ ص ۳۵۵ / مسائل رفعت قاسمي: ج ۵ ص ۵۰.

(۳) و منها صلوته خلف صف فيه فرجة وهذامكروه باتفاق الا ئمة ما عدا الحنابلة / الفقه على المذاهب الاربعة: ج ۱ ص ۲۵۳ / شرح النقاية: ج ۱ ص ۳۰۹ التاتارخانية على هامش الهندية: ج ۱ ص ۱۱۹. وَالنَّبِيُّ ﷺ قَالَ: خَيْرُصُفُوفِ الرِّجَالِأَوَّلُهَا ،وَشَرُّهَا آخِرُهَا رواه البخاريُّ: وَلِقَوْلِهِ ﷺ: يُتِمُّوْنَ الصُّفُوْفَ الأُولَ وَيَتَرَاصُّوْنَ فِى الصَّفِّ رَوَاهُ مُسْلِمٌ:

۲۲- هغه څوک چي د شا په صف کي ولاړ وي او د مخ په صف کي ځای وي نو بل څوک دده مخ ته تېرېدای سي او په دغه تېرېدو سره ګنهکار هم نه دی. (۱)

۲۳- او هغه خلك چي كعبه شريفه ويني پر هغو باندي دا لا زمه ده چي خامخا به د كعبې شريفي بناء ته مخامخ دريږي، داسي نيت به كوي چي مخ مي دی و دغه كعبې شريفي ته او لمونځ كوم خاص د الله تعالی لپاره، او مستقيمًا به كعبې شريفي ته دريږي، كه كوږ ولاړ وي لمونځ يې صحت نه لري، او كه دي په نيت كي وه چي سجده و كعبې شريفي ته كوم نو دا صحت نه لري ځكه غير له الله تعالی څخه بل شي ته سجده كفر دی، ولي چي سجده به دي خاص الله تعالی لره وي صرف مخ به دي پر لوري د كعبې شريفي وي. (۲)

---

(۱) الشامي: ج ۱ ص ۴۲۲.

(۲) الموسوعة الفقهية: ج ۴ ص ۶۴ / الطحطاوي على مراقي الفلاح: ص ۲۱۲ / البحر: ج ۱ ص ۴۹۵.

۲٤- د حرمينو شريفينو په امام پسي لمونځ نه کول لويه بې برخي ده، په ائمه اربعه کي د يوه تقليد واجب دی ځکه چي زموږ مشائخ او مشران علماء په اصولو او فروعو کي دامام المسلمين ابوحنيفة رحمه الله مقلدين دي، نو په حرمينو کي لمونځ په جماعت نه کول لويه بې برخي ده د حرمينو شريفينو امامان د امام احمد رحمه الله مقلدين دي، اهل السنة دي، اوس که څه هم زموږ د دوی سره په بعضي مسائلو کي اختلاف سته، خو دا نه چي په دوی پسي لمونځ نه کيږي، په دوی پسي جماعت کول صحيح دي.[۱]

۲۵- په مکه مکرمه او په هر ښار او کلي کي چي د پنځلس ۱۵ شپو نيت کړی وي نو دغه سړی مقيم بلل کيږي که يواځي لمونځ کوي او که په امام پسي يې کوي نو بايد فرضي لمونځ پوره څلور(۴) رکعته وکړي، او هغه څوک چي د پنځلس ۱۵ شپو نيت يې نه وي کړی نو مسافر بلل کيږي،که يې لمونځ يواځي کوی نو فرضي څلور(۴) رکعته لمونځ به دوه (۲) رکعته کوي يعني د ماپښين، مازديګر او ماخستن لمونځ به دوه – دوه رکعته کوي نو دې ته قصر وايي او دا قصر د ماښام په لمانځه کي

---

(۱) المهندعلى المفند ديوبند: ص ۴۲.

په وترو کي، په سنتو کي، په نفلو کي او د سهار په لمانځه کي نه کیږي نو د مسافر لپاره تر دوو رکعتو زیاتوب مکروه دی.[1]

## د دم او صدقې بیان

د حلا لېدلو په وخت کي به بسم الله وایي که تر حلا لېدلو وروسته ددغه حیوان غوښي غلا یا ورکي سي نو پروا نه کوي او که تر حلا لېدلو مخکي ورکي یا غلا سي او یا یې یو چا ته ژوندی صدقه کړي نو نه صحیح کیږي، او بل دم پر لازم دی، دم به د حرم په مځکه او حدودو کي

حلا لوي، که د حرم ترحدودو یې د باندي حلال کړي، نه دی روا د دم غوښي به پرمسکینانو باندي صدقه کوي او خپله یې خوراک نه دی روا که یې خپله وخوړې او یا یې خرڅي کړې نو د دغه خوړل سوي او خرڅ سوي قیمت ورکول پر لازم دی، د دغه دم غوښي به هغه فقیر ته ورکوي

---

[1] و لازال علی حکم السفر حتی ینوي الاقامة في بلدة أو قریة خمسة عشر یومًا أو أکثر، الهندیة: ج ۱ ص ۱۴۸ / رد المحتار: ج ۱ ص ۵۸۳. و إن اقتدی مسافر بمقیم أتم أربعا، الهندیة: ج ۱ ص ۱۴۲.

چي د ده زکات ورته صحیح کیږي نو که یې خپل مور، پلار، انا، نیکه، زوی، لور، لمسیان، خپلي ښځي یا خپل خاوند ته د دغه دم غوښي ورکړي نو د دغه ورکول سوو غوښو قیمت به یو مسکین ته ورکوي او دغه حیوان به د دم په نیت حلا لوي. (۱)

## د دعاء آداب او د قبولیت اسباب

د دعاء د قبلېدلو ځایونه او وختونه په لاندي ډول دي:

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: که څوک یو ځل پر ما درود شریف ووایي الله جل جلاله پر هغه کس لس رحمتونه نازلوي، نو د هري دعاء څخه مخ او وروسته د درود شریف ویونکي دعاء قبلیږي، ځکه چي حق تعالی جل جلاله که صرف د مخ او وروسته(درود) دعاء قبوله کړي او د مینځ دعاء قبوله نه کړي دا د هغه د کرم څخه ناممکنه ده:

یعني درودشریف حق تعالی قبلوي او د کریم ذات سره دا نه ښایي چي

(۱) غنیة الناسك: ص ۲۶۲. / معلم الحجاج: ص ۲۶۹. / اللباب: ص ۴۳۱.

یو څه دعاء قبوله کړي او یو څه قبوله نه کړي.[1]

# د دعاء د قبلېدو ځایونه

۱: کله چي پر کعبه شريفه سترګي ولګيږي، دعاء قبليږي په دغه وخت کي به اول درې واره الله اکبر ووايي يعني الله **جل جلاله**: تر هر شي ډېر لوی دی او درې واره به لا اله الا الله ووايي د دې لپاره چي د ناخبره سړي دا ګمان نسي چي عبادت د کعبې شريفي لپاره دی، ځکه عبادت خو د الله **جل جلاله** لپاره دی او د لوی څښتن تعالی کور ته راغلی يې د خدای شکرونه اداء کړه، لاسونه پورته کړه د خپلو روا حاجاتو لپاره لوی څښتن تعالی ته په ژړا - ژړا په خشوع او خضوع دعاء وکړه دغه لحظه د اجابت ده که چيري هر څه غواړې الله **جل جلاله** يې درکوي، په دعاء کي به اخلاص وي دعاء به يوازي د الله **جل جلاله** څخه طلب کول وي لاسونه به په دعاء کي پورته کوي ځان ته به تر نورو د مخه دعاء کوي او په خپله مورنۍ ژبه به د زړه له اخلاصه په مناسبو الفاظو له خدای تعالی څخه

---

(۱) فان الكريم لا يستجيب بعض الدعاء و يرد بعضه، الشامي: ج ۲ ص ۲۳۳.

غوښتنه کوي د خپلوانو او ټولو متعليقينو لپاره به دعاء کوي ځکه د يو مسلمان ورور دعاء دغائب په حق کي قبليږي نبي کريم صلی الله عليه وسلم په يو حديث شريف کي فرمايي :

**قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ ﷺ :مَنْ دَعَا لِاَ خِيْهِ بِظَهْرِ الْغَيْبِ قَالَ الْمَلَکُ الْمُؤَكَّلُ بِهِ آمِيْنَ وَلَکَ بِمِثْلٍ.** [١]

ژباړه: څوک چي خپل مسلمان ورور ته دهغه په غياب کي دعاء کوي نو کومه ملکه چي دده سره ملګرې ده هغه آمين پر وايي او وايي تا ته دي هم دده په شان دعاء ورسيږي

خو تر هر څه د مخه به له خدايه جنت غواړي. [٢]

د کعبې شريفي د ليدلو په وخت کي په ولاړه باندي دعاء کول مستحب

ده د دعاء لپاره د لاسونو د پورته کولو په هکله اختلاف دی، خو محققينو علماؤو حل داسي کړی دی چي مستحب دا ده چي د اول وار په

(١) مسلم: عن أم الدرداء عن زوجها

(٢) الشامي: ج ٢ ص ١٧٩ / غنية الناسك: ص ٩٧ / فتح القدير: ج ٢ ص٣٥٢.

لیدلوکي به لاسونه پورته کوي، او د هر وار د لیدلو پر مهال به بیا لاسونه نه پورته کوي. (۱)

۲: په هر طواف کي دعاء قبلیږي.

۳: د مقام ابراهیم شاته دعاء قبلیږي.

۴: پر صفا او مروا باندي دعاء قبلیږي.

۵: په صفا او مرواکي د دوو زرغونو څراغونو پر برابر دعاء قبلیږي.

۶: د زم زم د اوبو څښلو پر مهال دعاء قبلیږي.

۷: په حطیم شریف کي تر ناوې لاندي دعاء قبلیږي.

۸: پر ملتزم شریف دعاء قبلیږي.

ملتزم د حجر اسود څخه بیا د کعبې تر دروازې پوري دغه ځای ته وایي.

۹: د رکن یماني او حجر اسود تر مابینځ دعاء قبلیږي.

---

(۱) أقول الاولى الجمع بينهما بان يحمل الاثبات على أول رؤية والنفي على كل مرة.

مرقاة المفاتيح: ج ٥ ص ٤٩٤ / معلم الحجاج: ص ١٢٥ / منهاج السنن: ج ۴ ص ۶۷.

۱۰: د حجر اسود د مسحه کولو سره دعاء قبلیږي.

۱۱: بیت الله شریفي ته په کتلو سره دعاء قبلیږي.

۱۲: د عرفات په ورځ په عرفات کي دعاء قبلیږي.

۱۳: په مزدلفه شریفه کي د دریدلو پر مهال دعاء قبلیږي.

۱۴: د اول او دوهم شیطان د ویشتلو وروسته دعاء قبلیږي.

۱۵: د فرضي لمونځونو څخه وروسته دعاء قبلیږي.

۱۶: د لیلة القدر په شپه دعاء قبلیږي.

۱۷: د آذان او اقامت تر منځ دعاء قبلیږي.

۱۸: د جمعې په ورځ دعاء قبلیږي په خاصه توګه د ماځیګر په اخري برخه کي.

۱۹: دروژاتي دعاء قبلیږي هم دروژې پر مهال هم دروژمات په وخت کي.

۲۰: د باران اوریدلو په وخت کي دعاء قبلیږي.

۲۱: د مسافر دعاء قبلیږي.

۲۲: د الله جل جلاله په نومونو او صفتونو سره هم دعاء قبلیږي.

۲۳: د شپې په وروستۍ یعني آخري دریمه برخه کي دعاء قبلیږي.

۲٤: او رسول الله ﷺ په یو حدیث شریف کي فرمایې: [۱]

چي درې دعاء وي ضرور قبلیږي.

(۱) د پلار دعاء (۲) دمسافر دعاء (۳) دمظلوم دعاء.

دعاء یوازي دالله جل جلا له څخه غوښتل،او دعاء درې ځلي تکرارول الله جل جلاله د دعاء حکم کړی دی او هم یې د قبلېدو وعده کړې ده نو ځکه بندګانو ته په کار ده چي تل د دعاء سره ځان عادت کړي، د مؤمن هره دعاء قبلیږي ځکه الله جل جلاله یې وعده کړې ده، البته چي په هغه کي د ګناه او د خپلوي د پرېکولو غوښتنه نه وي، او حرامه نفقه د دعاء د قبلېدو مخه نیسي

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

اې خلګو الله جل جلاله طیب دی بې له پاکیزه او حلالي صدقې څخه بله

(۱) أخرجه أبوداؤد:(١٥٣٤) والترمذي:(١٩٠٥) وابن ماجه: (٣٨٦٢) وأحمد:(٧٥٠١) ومشكاة المصابيح: (٢١٩٠).

صدقه نه قبلوي.

او ددعاء دقبلېدلو لپاره دا هم ضروري ده چي کوم څه په خوله غواړې او په هغه کي ځان الله جل جلاله ته اړ او محتاج بولې نو په زړه کي به هم ځان همداسي اړ او محتاج بولې او غوښتنه به يې لرې، ځکه الله جل جلاله دغافل او په بل څه باندي دمشغول زړه دعاء نه قبلوي.

او رسول الله صلی الله علیه وسلم به همدغه دعاء ډيره زياته کوله.

**اَللَّهُمَّ رَبَّنَا آتِنَا فِي الدُّنْيَا حَسَنَةً وَّ فِي الْاَخِرَةِ حَسَنَةً وَّ قِنَا عَذَابَ النَّارِ.**[1]

ژباړه: اې زموږ ربه جل جلاله موږ ته په دنيا کښي نعمت راکړې او په اخرت کښي نعمت راکړې او د دوږخ له عذاب څخه مووساتې.
او رسول الله صلی الله علیه وسلم يو کس ته داسي دعاء وروښودله:

**اَللَّهُمَّ اغْفِرْلِيْ وَارْحَمْنِيْ وَعَافِنِيْ وَارْزُقْنِيْ**

ژباړه:اې الله جل جلاله ته ما ته بخښنه وکړه،او پر ما باندي ورحمېږه او ماته عافيت راکړه او ما ته رزق راکړه.

---

(۱) رواه مسلم: عن أنس رضي الله عنه .

# د مدينې منورې بيان

درسول الله صلی الله عليه وسلم ډېر لوړ مقام او منزلت دی الله جل جلاله دومره لوړ مقام ورکړی دی چي خپله الله جل جلاله او هم د الله ملائکي درود پر وايي او مؤمنانو ته هم الله جل جلاله حکم کړی دی، چي تاسو پر حضرت محمدصلی الله عليه وسلم درود او سلام ووایاست الله جل جلاله فرمايي:

**إِنَّ اللّٰهَ وَمَلٰئِكَتَهٗ يُصَلُّوْنَ عَلَى النَّبِيِّ يٰأَيُّهَا الَّذِيْنَ ءَامَنُوْا صَلُّوْا عَلَيْهِ وَسَلِّمُوْا تَسْلِيْمًا**(٢)

ژباړه: يقيناالله او دهغه پرښتې پر پېغمبرصلی الله عليه وسلم درود وايي

اې مؤمنانو !تاسي هم پر هغه درود او سلام ووایاست.

څرنګه چي په دغه آية کريمه کي الله پاک په صلوٰة او سلام سره امر کړی دی نو بايد همېشه پر نبي کريم صلی الله عليه وسلم باندي درود او سلام وواياو په خاصه توګه بيا په مدينه منوره کي ډېر درود شريف ويل پکار

دي په مدينه منوره کي تر فرضو لمونځونو وروسته درود شريف ويل

---

(٢) سُورَةُ الأحزَاب (٥٢)

زیات فضیلت لري رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

**مَنْ صَلَّى عَلَيَّ وَاحِدَةً صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ عَشْرًا**.(۱)

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:که څوک یو ځلي پر ما باندي درود شریف ووایي الله **جل جلاله** پر هغه باندي لس (۱۰) رحمتونه نازلوي،درودشریف ویل دالله **جل جلا** له رحمت دی، پرایمان باندي دخاتمې کېدلو ذریعه ده،او درزق پراخي راولي.(۲)

او په بل حدیث شریف کي راځي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:

**مَنْ زَارَنِيْ بَعْدَ مَوْتِيْ فَكَاَ نَّمَا زَارَنِيْ فِيْ حَيَاتِيْ**.

ژباړه: کوم څوک چي زما تر وفات وروسته زما زیارت وکړي هغه داسي دی لکه زما په ژوندکي چي زما زیارت وکړي او څوک چي زما زیارت وکړي د هغه لپاره زما شفاعت واجب دی. (۳)

---

(۱) رواه مسلم: عن أبي هريرة.

(۲) خزينة الاسرار: ص ۲۰۷

(۳) رواه البيهقي في شعب الايمان: و منها قوله صلى الله عليه وسلم في الحديث من زار قبري وجبت له شفاعتي.غنية الناسك: ص ۳۷۴ / الموسوعة الفقهية: ج ۲۴ ص ۸۴ / إعلا السنن: ج ۷ ص ۳۶۰۱.

# د مدينې منورې فضائل

د مدينې منورې فضائل ډېر زيات دي.

د مدينې منورې پاکوالی او د هغې عظمت صرف له همدې خبرې څرګندیږي چي هغه په نبيانو کي د افضل نبي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مسکن وو او اوس د هغوی مدفن دی، دا یو داسي لوی فضیلت دی چي کوم بل ځای ته په نصیب نه دی، په قرآن کریم او نبوي احاديثو کي يې ډېر صفتونه بيان سوي دي، په قرآن کريم کي پنځلس ځایه د مدينې نوم راغلی دی چي څلور ځایه همدغه مدينه منوره ځني مراد ده، د مدينې منورې په هکله د رسول الله صلی الله علیه وسلم دعاوي پردې دلالت کوي چي دا ښار د دنيا او آخرت د ښېګڼو درلودونکی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي:

حضرت ابراهيم عليه السلام مکه حرم جوړ کړی وو او د هغې خلګو ته

يې دعاوي کړي وې ما مدينه همدغسي حرم بللی دی او د هغې د غلې او رزق لپاره مي ترمکې د دوه برابره زيات برکت دعاوي کړي دي.(۱)

---

(۱) بخاري شريف: ۲۱۲۹ حديث او مسلم شريف: ۱۳۶۰ حديث.

# د مدينې منورې نومونه

د مدينې منورې نومونه په احاديثو کې ډېر زيات راغلي دي مشهور يې مدينه ده، رسول الله صلی الله عليه وسلم به له مدينې منورې سره دونډي مينه او محبت وو کله چې به په سفر ولاړی نو د بېرته راتلو پر مهال چې به مدينې منورې ته رانژدې سو د مدينې منورې پر آبادی به يې سترګي ولګېدې نو رسول الله صلی الله عليه وسلم به له ډېره شوقه خپله سورلۍ چټکه کړه او و به يې ويل چې دا طابه راغله.(١)

او فرمايل به يې دا د طيبه هواګاني دي، په صحابه کرامو رضي الله عنهم کې چې به کوم صحابي د دوړو او ګرځ په وجه خپله خوله پټه کړه نو ده مبارك صلی الله عليه وسلم به منع کول او فرمايل به يې: چې د مدينې منورې په خاورو کې شفاء ده، نبي کريم صلی الله عليه وسلم فرمايلي دي: چې ايمان به د مدينې پر لور بېرته راوګرځي لکه مار چې خپل غار ته راځي.(٢)

---

(١) صحيح البخاري: ١٨٨٦ حديث.

(٢) صحيح البخاري: ١٨٧٦ حديث.

نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي:

چي دجال به پر هر ښار تېرېږي خو مکې او مدينې ته به نسي راتلای ملا ئکي به ددغو ښارونو حفاظت کوي.

حضرت محمد صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي:

چي له مدينې منورې څخه به بد خلګ داسي باسي لکه پښ چي له اوسپني څخه زنګ باسي په کوره کي.(۱)

د مدينې په پاکه خاوره کي او د هغې په مېوه کي الله تعالى جل جلاله د شفاء تاثير ايښی دی لکه څرنګه چي په حديث شريف کي راځي، نبي کريم صلى الله عليه وسلم فرمايي:

چي مدينه زما د هجرت مقام دی، او هلته به زما دفن وي او له هم دې ځايه به د قيامت په ورځ زه راپورته کېږم، څوک چي زما د همسايګانو يعني د مدينې د اوسېدونکو حقوق خوندي کړي د قيامت په ورځ به زه د د هغه شفاعت کوم او د هغه د ايمان شاهدي به ورکوم.

---

(۱) صحيح البخاري: ۱۸۷۱ حديث.

په بل حديث شريف کې راځي:

کوم څوک چې د مدينې د خلکو سره بد وکړي هغه به داسې ويلي سي لکه په اوبو کې چې مالګه ويليږي.

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائلي دي:

کوم څوک چې په مدينه کې مړ سي د قيامت په ورځ زه د هغه شفاعت کوم او د هغه د ايمان شاهدي ورکوم.

او په بل حديث شريف کې راغلي دي:

چې تر ټولو مخکې کومو خلکو ته چې زما شفاعت په برخه کيږي هغه به اهل مدينه وي تر دې وروسته به د مکې اهل وي او تر دې وروسته به د طائف اهل وي وروسته شفاعت د نور اُمت او دا خبره ثابته ده چې د انسان مرګ به په هغه ځای کې وي چې خاوره يې د هغه ځای څخه اخيستل سوې وي او څرنګه چې په مدينه منوره کې مرګ يو خاص فضيلت لري نو په اعتبار د اولتوب د شفاعت ستاسو څخه دا غوښتنه کوم چې يوه ښه دعاء راته وکړئ چې په مدينه منوره کې د رسول الله

صلى الله عليه وسلم په جواريت كي د ايمان سره په بقيع شريف كي دفن سم آمين.

كعب رضي الله عنه وايي چي هره ورځ اويا زره ۷۰۰۰۰ ملكي د رسول الله صلى الله عليه وسلم وقبر مبارک ته راکښته کيږي تر ماښامه پوري کښته وي اوماښام بيا بيرته پورته سي اويا زره ۷۰۰۰۰ نوري ملکي راکښته سي تر سهاره پوري کښته وي، دغه طريقه تر قيامت پوري جاري وي تر څو چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د حشرګاه په ورځ په اويا زره ملکو کښي را پورته سي. (۱)

مدينې منورې ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زيارت مبارک په نيت ورتلل سنت مؤکد او د واجب مرتبې ته نژدې دی مدينې منورې ته د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زيارت مبارک په نيت ورتلل افضل دي زيارت کوونکي دي د رسول الله صلى الله عليه وسل د روضې قصد او نيت وکړي،د نبوي مسجد زيارت هم د هغه په ضمن کي کېدلا ی سي.(۲)

---

(۱) مشکوٰة شريف: ج ۲ ص۵۴۶ / التاتارخانية: ج ۲ ص ۳۵۶.

(۲) الطحاوي على مراقي الفلاح: ص ۷۴۵ / الشامي: ج۲ ص ۲۷۹ / فتح القدير: ج ۳ ص ۹۴.

د انسان په ژوند کي دا لوی سعادت دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مقدسي روضې شریفي او د مسجد نبوي شریف لپاره مدینې منورې ته ولاړ سي نیت به خاص د الله جل جلا له رضا وي د خالص نیت نخښه دا ده چي فرائض او سنن ځني قضا نسي.(۱)

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم مبارک دربار ته د حاضرېدو برکتونه او فضیلتونه به زه څنګه بیان کړم ددې مقدس او متبرک ښار هر غر او هره غتېه غونډۍ، هره شېله، هره کوڅه له برکت او فضیلته ډکه ده.

او د رسول الله صلی الله علیه وسلم په روضې شریفي باندي د توسل نیت وکړئ، ددې مقام څخه پورته به بل د توسل او تقرب ستره وسیله چیري وي!

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي: زه په قبر کي ژوندی یم او رزق راکول کیږي، همدارازتول انبیاء علیهم السلام په قبرونو کي

(۱) ملا علي قاري: ص ۵۰۳.

ژوندي دي، د شهیدانو په اړه هم الله جل جلاله فرمایي (۱)

**وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِيْنَ قُتِلُوْا فِيْ سَبِيْلِ اللّٰهِ أَمْوٰتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِنْدَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُوْنَ**

ژباړه: کوم کسان چي د الله جل جلاله په لار کښي وژل سویدي، هغوی مړه مه ګڼئ، هغوی خو په حقیقت کښي ژوندي دي، د خپل رب په وړاندي روزي مومي.

د رسول الله صلی الله علیه وسلم مقام ډېر لوړ دی د هغه په حضور کي باید څوک په لوړ آواز ونه ږغیږي، بلکي په ډېر ادب او ټیټ آواز به خبري کوي، ځکه الله جل جلاله حکم کړی دی.(۲)

**يَا اَيُّهَا الَّذِيْنَ ءَامَنُوْا لَا تَرْفَعُوْا أَصْوٰتَكُمْ فَوْقَ صَوْتِ النَّبِيِّ وَلَا تَجْهَرُوْا لَهٗ بِالْقَوْلِ كَجَهْرِ بَعْضِكُمْ لِبَعْضٍ أَنْ تَحْبَطَ أَعْمٰلُكُمْ وَ اَنتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ.**

---

(۱) سُورَةُ آل عِمرَان: (۱۶۹) آیت

(۲) سُورَةُ الحُجرَات: (۲) آیت

ژباړه: اې مؤمنانو! خپل آواز د پېغمبر صلی الله علیه وسلم د آواز څخه مه پورته کوئ او مه له پېغمبر صلی الله علیه وسلم سره په لوړ ږغ خبرې کوئ لکه څنګه چې پخپلو منځو کښې یو له بل سره په لوړ ږغ خبرې کوئ .هسې نه چې ستاسې ټول عملونه ضایع سي او تاسې خبر هم ونه اوسئ.

لکه څرنګه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په ژوند کې د هغه په حضور کې آواز پورته کول یعنې په زوره په زوره خبرې کول منع دي همدا راز دهغه د وفات څخه وروسته د روضې مطهرې سره په لوړ آواز ږغېدل که څه هم دعاء او سلام وي منع دي، څرنګه چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم زیارت یولازمه وظیفه ده نو چې د هره ځایه څخه دي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زیارت اراده وي نو ستا وظیفه به ټوله لار درود شریف وي،کوم وخت چې دي سترګې د مدینې منورې د ښار پر آبادۍ او باغونو باندې ولګیږي نو د دنیا او آخرت دعاوې به کوې او درود شریف به ډېر وایې چې هر کله مدینې منورې ته ورسېدې خپل اطاق به ونیسې خپل سامان به هلته کښېږدې خپل فکر او زړه به آرام کړې که بې خوبه وې خپل خوب به وکړې چې فارغه سوې افضل دا دی

چي غسل وکړې په خپل اطاق کي د زیارت د احترام دپاره که درته آسانه وي او که نه وي درته آسانه بیا به اودس تازه کړې بیابه نوي جامې واغوندې که نوي جامې نه وي نو بیا به پرېولي کالي واغوندې او عطر به په ځان ووهې او په ډېره عاجزي او آدب سره به د مسجد نبوي شریف خواته روان سې او درود او سلام به ډېر وایې.(۱)

کله چي مسجد نبوي ته ننوزئ نو د هغه د عظمت څخه مه غافله کېږئ ولي چي دا دوحیو د نازلېدو او د رحمت ځای دی، او د حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم مسجد دی، دې مسجد ته د ننوتلو پر مهال که څه هم د لږ وخت لپاره وي باید د اعتکاف نیت وکړئ ولي چي په مسجد حرام او مسجد نبوي کي اعتکاف کول مستحب دی، او روژه هم نه غواړي په صلاة او سلام په ذکر و تلاوت ځان مصروفه کړئ!(۲)

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:
څوک چي زما دغه مسجد ته ننوزي او د خیر کار په ښوولو او یا زده کولو بوخت سي دوندي ثواب لري لکه د خدای په لار کي چي جهاد کوي

(۱) الفقه علی المذاهب الاربعة: ج ۱ ص ۶۴۰.
(۲) غنیة الناسک: ص ۱۳۸ / الهندیة: ج ۱ص ۲۱۱.

البته څوک چي د نورو شيانو لپاره هلته ورځي مثلاً دخلکو سره د ملاقات کېدو، يا به څوک ووينم، يا به مي ووينې يعني د مجلس او خبرو لپاره ننوزي داسي مثال لري لکه د نورو خلکو ښائسته شيانو ته چي ګوري او خوښيږي يې خو ور رسيږي نه.

او مسجد نبوي شريف ته پر باب جبرائيل دروازه داخلېدل افضل دي خو اکثريت وخت د باب جبرائيل دروازه بنده وي نو پر باب السلام يا بله هره دروازه چي وي ور ننوزي دي د داخلېدو پر مهال به راسته پښه دمخه کړئ او دا دعاء به ووايا ست (۱)

**بِسْمِ اللهِ وَ الصَّلٰوةُ وَ السَّلَامُ عَلٰى رَسُوْلِ اللهِ رَبِّ اغْفِرْلِيْ ذُنُوْبِيْ وَ افْتَحْ لِيْ أَبْوَابَ رَحْمَتِكَ.**

ژباړه: شروع کوم د الله په نامه سره درود او سلام دي وي پر رسول الله ﷺ اې لويه څښتنه زما ګناه راوبخښه او زما لپاره خپل د رحمت دروازې خلاصي کړه.

---

(۱) غنية الناسك: ص ۳۷۶ / اللباب مع الشرح: ص۵۵۷.

کله چي مسجد نبوي شریف ته داخل سې که مکروه وخت نه وي نو اول به دوه رکعته تحیة المسجد لمونځ وکړې په ټوله مسجد نبوي شریف کي صحیح دی، خو افضل دا ده چي په ریاض الجنة د رسول الله صلی الله علیه وسلم د منبر سره نژدې وسي په دې شرط چي ګڼه ګوڼه به نه وي، که وخت کم وي او یا د فرضي لمانځه جماعت ولاړ وي په دغه وخت کي به یې نه کوې او تحیة المسجد په دغه فرض لمانځه باندي اداء کیږي.(۱)

له تحیة المسجد څخه تر سلام ګرځولو وروسته چي فارغه سواست نو پر همدغه لوی نعمت الله جل جلاله ته د شکر سجده اداء کړئ زموږ د حنفي علماؤو په نزد دلته د شکر سجده کول جائز ده یا د شکرانې په نیت دوه رکعته لمونځ وکړئ.(۲)

## ریاض الجنة

ریاض الجنة د روضې شریفي په نامه یادیږي د نبوي مسجد په همدغه

(۱) غنیة الناسك: ص ۳۷۷ / اللباب مع الشرح: ص ۵۵۸.
(۲) رحمت بیان: ص ۲۹۸ / شرح لباب: ص ۵۰۷ / فتح القدیر: ج ۳ ص ۹۵.

برخه د منبر څخه بیا د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر کوره یعني د ختیځ خوا ته د مسجد نبوي سره موښتې ده، دا برخه رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنت د باغچو څخه یو باغچه بللې ده، په حقیقت کي د جنت یوه ټوټه ده چي دې دنیا ته رانقل سوې ده او د قیامت په ورځ به دا ځای و جنت ته ور شاملیږي دا برخه اوس په زرغونو غالیو فرش ده لکه ټول مسجد نبوي، چي مخکي په سپینو رنګو غالیو فرش وه.

ابو هریرة رضي الله عنه روایت کړی دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:

**مَا بَيْنَ بَيْتِيْ وَ مَنْبَرِيْ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ وَ مَنْبَرِيْ عَلى حَوْضِيْ**

ژباړه: زما د کور او منبر تر منځ د جنت د باغچو څخه یوه باغچه ده او زما منبر پر حوض کوثر دی او د منبر بنیاد په جنت کي دی، دلته په دغه ریاض الجنة کي چي د جنت مځکه ده که وخت پیدا سي نو نفل کول دجنت په مځکه کي زیات ثواب لري، څرنګه چي الله جل جلاله و حضرت ابراهیم علیه السلام ته حجر الاسود د جنت څخه ورکړی چي خلیل الله دی دغسي یې و حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم ته روضه شریفه ورکړې چي حبیب الله دی او روضه شریفه ټوله شل (۲۰)

ستون ده، څلور ستون په عرض ده، پنځه ستون په اوږدو ده، او هر ستون او هر ځای د روضې شریفي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د لمونځو ځای دی، یا د اصحابو دی، یو ځای هم د روضې شریفي د فضیلت څخه خالي نه دی نو باید ځان په مشرف کړو.

مواجهي شریفي او روضې شریفي ته ستا ورتلل ستا تر محبت پوري تعلق لري که دي محبت په حقیقت کي درلودی نو زیارت ته به ډېر ورځې هر څونه چي ډېر ورځې اٰن په اٰن به دي محبت ورسره ډېرېږي که د روضې مبارکي شوق لرې نو دماخستن د لسو بجو ۰۰ :۱۰ څخه وروسته چي ورسې هر ځای چي دي زړه غواړي هلته لمونځ کولای سې.

په دې ریاض الجنة کي چیري چي به رسول الله صلی الله علیه وسلم امامت کاوه، پر دغه ځای اوس یو ښائسته محراب جوړ سوی دی چي ورته نبوي محراب ویل کیږي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د وفات څخه وروسته د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مصلې په برکتمن ځای د تعظیم ساتلو په غرض حضرت ابو بکر رضي الله عنه د نبي کریم صلی الله علیه وسلم د لمانځه کولو پر ځای دېوال جوړ کړی د پښو مبارکو ځای یې پرېښودی تر څو د ده مبارک د سجدې ځای د خلکو تر پښو لا ندي د راتلو څخه خوندي سي، اوس چي امام د رسول الله صلی الله علیه

وسلم د مصلیٰ پر ځای لمونځ کوي په سجده کي د ده تندی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د پښو مبارکو پرځای راځي.(۱)

تر تحیة المسجد کولو وروسته به په ډېر آدب او درناوي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مرقد مبارک ته ورسيږ مخامخ به په عاجزۍ او حیا د زړه په بشپړ حضور سره ودرېږي کښته به د حجرې مبارکي دېوال ته وګوري او اندامونو ته به حرکت نه ورکوي، او د دنیاوي او نورو وسوسو څخه به خپل زړه را فارغه کړي پر خپل عادي ولاړه به ودرېږي د نورو مسلمانانو به ډېر خیال ساتي چاته به تکلیف نه ورکوي او سر به کوږ نه نیسي او داسي فکر به کوي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم حاضر او ناست دی ماته ګوري زما په درېدو او سلام ویلو خبر دی د هر سلام جواب په وعلیکم راته وایي، د رسول الله صلی الله علیه وسلم شرف او قدر به دي په زړه کي وي او پر دوه متره اندازه به ودرېږي او تر دغه به نه ورنژدې کېږي په میانه آواز سره چي تر قبر مبارک پوري رسیږي نه په ډېر لوړ او نه په ډېر کښته آواز سره به په دغه الفاظو پر رسول الله صلی الله علیه وسلم صلوة او سلام ووایي:

---

(۱) دحج اوعمرې مسئلې: مولانا محمد رفعت قاسمي حفظه الله ص ٤٣٩

اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ أَيُّهَا النَّبِيُّ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَبَرَكَاتُهُ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا نَبِيَّ اللّٰهِ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا حَبِيْبَ اللّٰهِ اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُحَمَّدُ رَسُوْلُ اللّٰهِ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مَنْ أَرْسَلَكَ اللّٰهُ لَنَا رَحْمَةً، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَحْمَةً لِّلْعَالَمِيْنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا خَيْرَ خَلْقِ اللّٰهِ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا سَيِّدَ الْمُرْسَلِيْنَ اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا إِمَامَ الْمُتَّقِيْنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا شَفِيْعَ الْمُذْنِبِيْنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا بَشِيْرُ يَا نَذِيْرُ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مُبَشِّرَ الْمُحْسِنِيْنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا خَاتَمَ النَّبِيِّنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ وَ عَلٰى سَائِرِ الْأَنْبِيَاءِ وَالْمُرْسَلِيْنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ وَ عَلٰى أَهْلِ بَيْتِكَ الطَّاهِرِيْنَ، اَلصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ وَ عَلٰى أَزْوَاجِكَ أُمَّهَاتِ الْمُؤْمِنِيْنَ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ وَ عَلٰى اٰلِكَ وَ اَصْحَابِكَ وَ اَتْبَاعِكَ وَ جَمِيْعِ أَمْوَاتِ الْمُسْلِمِيْنَ وَ عَلَيْنَا مَعَكُمْ أَجْمَعَيْنَ اٰمِيْن، اَللّٰهُمَ لَا تَجْعَلْ هٰذَا آخِرَ الْعَهْدِ بِقَبْرِ نَبِيِّنَا عَلَيْهِ السَّلَامُ وَارْزُقْنَا الْعَوْدَ إِلَيْهِ يَاذَالْجَلَالِ وَ الْاِ كْرَامِ (١)

---

(١) الهندية :ج ١ ص٢٦٥ ومن ضاق وقته عما ذكرنا أو عجز عن حفظه اقتصر على بعضه و أقله السلام عليک يا رسول الله. غنية الناسک: ص ٣٧٩ / إعلاء السنن: ج ٧ ص٣٦١٩ / مجامع المناسک: ص ٦٥٠

بیا نو خپلې دعاوې وکړه!

او یو ګز به پر راسته طرف وځکېږئ پر ابو بکر صدیق رضي الله عنه به سلام ووایاست.

**اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا خَلِيْفَةَ رَسُوْلِ اللّٰهِ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا وَزِيْرَ رَسُوْلِ اللّٰهِ،اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا صَاحِبَ رَسُوْلِ اللّٰهِ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا صَفِيَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ثَانِيَّ رَسُوْلِ اللّٰهِ فِيْ الغَارِ وَ رَفِيْقَهُ فِيْ الاَسْفَارِ وَ أَمِيْنَهُ فِيْ الاَسْرَارِ عَلَمِ المُهَاجِرِيْنَ وَ الاَنْصَارِ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ وَرَحْمَةُ اللّٰهِ وَ بَرَكَاتُهُ جَزَاكَ اللّٰهُ عَنْ رَّسُوْلِهِ وَ عَنِ الْاِسْلَامِ وَ أَهْلِهِ الْجَزَآءَ.**

بیا به یو ګز خپل پر راسته طرف وځکېږئ پر عمر فاروق رضي الله عنه به سلام ووایاست.

**اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا اَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ عُمَرَ الفَارُوْقَ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا ثَانِيَّ الْخُلَفَاءِ الرَّاشِدِيْنَ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا صَاحِبَ رَسُوْلِ اللّٰهِ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مَنْ أَعَزَّ اللّٰهُ بِكَ الْاِسْلَامَ اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا سِرَاجَ أَهْلِ الْجَنَّةِ،اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مَنْ قَالَ فِيْ حَقِّكَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَا طَلَعَتِ الشَّمْسُ عَلٰى رَجُلٍ خَيْرَ مِنْ**

**عُمَرَ، اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا مَنْ عَاشَ حَمِيْدًا وَ خَرَجَ مِنَ الدُّنْيَا شَهِيْدًا جَزَاكَ اللّٰهُ عَنْ نَبِيِّهِ وَ خَلِيْفَتِهِ وَ أُمَّتِهِ خَيْرَ الْجَزَآءِ.**

که یو چا درته ویلي وه چي زما له طرفه پر رسول الله صلی الله علیه وسلم سلام ووایه نو د دغه سلام رسول واجب دي او داسي به يې ووايې چي د فلاني کس چي د فلاني زوی دی د هغه له طرفه څخه دي پر تا باندي سلام وي یا رسول الله صلی الله علیه وسلم.[1]

که یو کس یا ډېرو خلکو د سلام درته ویلي وي او ستا د هغه یا د پلار نوم نه وي په یاد نو دغه سلام به داسي ووایې چي د ټولو هغه خلکو له طرفه دي پر تا باندي اې رسول الله صلی الله علیه وسلم سلام وي چي ماته يې ستا لپاره د سلام ویلي دي.

**اَلسَّلَامُ عَلَيْكَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مِنْ جِمِيْعِ مَنْ أَوْصَانِيْ بِالسَّلَامِ عَلَيْكَ.**[2]

---

[1] الهندیة: ج ۱ ص ۲٦۵ / فقه علی المذاهب الاربعة: ج ۱ ص ٦۴۰.

[2] معلم الحجاج ص ۳۲۷.

پس له درود او سلام ویلو به په مواجهه شریفه کي شا وقبر مبارك ته نه ګرځوې چي دعاء کوې ولي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم خپله قبله د دعاء ده.(١)

د رسول الله صلی الله علیه وسلم قبر مبارک ته چي دعا کوئ لاسونه مه پورته کوئ چي هلته عسکر ولاړ دي خلك نعرې دربانديي وهي، چي مخ کعبې ته کړې بیا چي لاسونه پورته نه کړې بیا کار نه درلري او که په مواجهه شریفه کي ګڼه ګوڼه وه بیا د روضې شریفي لخوا څخه خپل صلوة او سلام ووایاست!

د ابوبکر الصدیق رضي الله عنه د خلافت په دوه( ٢ )کاله دوره کي او د حضرت عمرفاروق رضي الله عنه د خلافت په لس( ١٠ )کاله دوره کي او د سیدنا عثمان رضي الله عنه د خلافت تر دریم ٣ کال پوري چي دغه درې دورې پنځلس کاله کیږي ټولو صحابه کرامو د روضې شریفي لخوا صلوة او سلام وایه!

---

(١) ولا يستدبر القبر المقدس في صلوة ولا غيرها / مجامع المناسك: ص ٦٥٤ / اللباب: ص ٥٦٧ / غنية الناسك: ص ٣٨٢.

امام ابو حنیفة رحمة الله علیه د ابن عمر رضي الله عنهما څخه روایت کوي چي ابن عمر رضي الله عنهما فرمائلي دي: د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبر مبارک سنت طریقه دا ده چي شا و قبلې ته کړه مخ د ده مبارک و قبر ته کړه راسته لاس پر چپه لاس کښېږده نو سلامونه ووایه.

او د امام ابو حنیفة صاحب د مذهب مطابق د حجرې مچول او پر هغه ځان مښلول، یا مچول، د پنجرو او دیوالو مسح کول او کوږ مغزی نیول،یا لاسونه ورته پورته کول، یا سر ورته ټیټول جائز نه دي، دغه افعال شیعه ګان کوي اوځیني ښځي یې کوي دغه کارونه د ادب خلاف او بدعت دی، د نبي کریم صلی الله علیه وسلم پر قبر یا پر هر قبر چي وي طواف پر کول او یا د قبر لور ته لمونځ کول جائز نه دي، ځکه رسول الله صلی الله علیه وسلم په خپله دیوه لا شریك الله جَلَّ جَلَالُهُ لپاره عبادت او سجده کولو تبلیغ کړی دی، دغه عبادت یې یوازي د کعبې شریفې خوا ته خاص کړی دی هغه هم د الله تعالی په نامه.

په مواجهه شریفه کي چي کوم درې سوري مخامخ دي، اول غټ سوری د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبر برابري ده، دوهم سوری د ابوبکر

صدیق رضي الله عنه د قبر برابري ده، دریم سوری د عمر فاروق رضي الله عنه د قبر برابري ده.

چاته چي د اوږدو سلامونو د ویلو وخت نه پیدا کیږي یا یې نسي یادولای، یا جماعت دریږي، یا بل کوم ضرورت وي نو هغه ته په دې رو لنډو الفاظو توصیه سوې ده، د صلاة او سلام کومي صیغې او کلمې چي راغلي دي دا د علماوو کرامو لخوا غوره سوي دي خو په دې کلمو کي کوم خاص تحدید او تأکل نسته، کوم صلاة او سلام چي چا ته غوره وي د زیارت کوونکي خوښ وي هغه دي پر ووایي، خو داسي الفاظ چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د شان سره ښایي.(۱)

په مسجد نبوي شریف کي که چیري ګڼه ګوڼه وه چي هر چیري ودریږي هلته درود او سلام ووایاست رسول الله صلی الله علیه وسلم یې اوري.(۲)

---

(۱) غنیة الناسك: ص ۳۷۹ / فتح القدیر: ج ۳ ص ۹۵.

(۲) تذکرة الخلیل: ص ۳۹۸ / قَالَ النَّبِیُّ ﷺ إِنَّ للهِ مَلَائِکَةً سَیَّاحِیْنَ فِی الْاَرْضِ یُبَلِّغُوْنَ مِنْ أُمَّتِيْ اَلسَّلَامَ رَوَاهُ النَّسائِيُّ.

هر کله چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبر په مقابل تېرېږی که په مسجد نبوي کي یاست که دباندي یاست ورته ودرېږئ او سلام ورته اداء کوئ!

په مسجد نبوي شریف کي دننه و حجرې مبارکي ته کتل یا د مسجد څخه و زرغونې ګنبدي ته کتل یا د باندي څخه و زرغونې ګنبدي ته کتل عبادت دی.(١)

کله چي له سلامونو څخه فارغه سواست څه چي له الله تعالی څخه غواړئ د رسول الله صلی الله علیه وسلم په وسیله یې وغواړئ او د رسول الله صلی الله علیه وسلم شفاعت طلب کړئ!(٢)

تر څه وخته چي په مدینه منوره کي یاست تر خپل طاقته روژې نیسئ که

څه هم مسافر یاست او د خپل توان او طاقت مطابق فقیرانو ته خیرات ورکوئ او په نبوي مسجد کي لږ تر لږه یوه شپه په ویښه تېره کړئ تر

څو د الله جل جلاله عبادت وکړی خو پام کوئ چي د لمونځ کوونکو مخ

(١) معلم الحجاج: ص ٣٢٥ / ملا علي قاري: ص٥٦٠ / غنية الناسك: ص ٣٨٢.
(٢) فتح القدير: ج ٣ ص ٩٥

ته تېر نسئ ځکه چي دا بيخي لويه ګناه ده.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي:

که د لمانځه و مخ ته تېرېدونکی پوه سي چي دا عمل څومره ګناه لري نو دی به ودرېږي څلوېښت، هغه راوي وايي چي زه نه پو هېږم چي (۴۰) کاله، يا (۴۰) مياشتي او که يې (۴۰) ورځي وويل لکن ابو هريره رضي الله عنه وايي چي (۴۰) کاله دي چي خلك وبيرېږي.(۱)

په حرمينو شريفينو کي او په ټوله دنيا کي د لمانځه مختته مه تېرېږئ بې له طوافه چي بيان يې مخکي سوی دی، د دغه بعضي خلګو په قول مه کوئ چي وايي په حرمينو شريفينو کي پروا نه لري.

(۱) قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: لَوْ يَعْلَمُ الْمَارُّ بَيْنَ يَدَىِ الْمُصَلِّي مَاذَا عَلَيْهِ مِنَ الْاِثْمِ لَكَانَ اَنْ يَقِفَ اَرْبَعِيْنَ خَيْرًا لَهُ مِنْ أَنْ يَّمُرَ بَيْنَ يَدَيْهِ قَالَ أَبُو النَضْرِ لَا أَدْرِي قَالَ أَرْبَعِيْنَ يَوْمًا ،أَوْ شَهْرًا ، أَوْ سَنَةً (متفق عليه)

# دجماعت دلمانځه بيان

د جماعت لمونځونو ته کوښښ کوئ چي هر وخت حاضر سئ، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائلي دي:

د جماعت لمونځ تر يوازي لمانځه اوه ويشت درجې فضيلت لري. (١)

پنځه لمونځونه په جماعت اداء کول زموږ د امامانو د صحيح قول له مخي واجب دی، رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمائلي دي: تر ټولو درانه او ګران لمونځونه پرمنافقينو باندي د ماخستن او د سهار لمونځونه دي او که دوی ته ددغو دوو لمونځونو ثوابونه معلوم وای نو

بيا به پر ښکېدو هم ورته راتللای. او رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: چي ما قصد کړی وي چي د لمانځه د اداينې حکم وکړم اقامت يې وسي او بيا يو څوک امر کړم چي خلکو ته لمونځ ورکړي او زه څه کسان چي لرګي ورسره وي د ځان سره بوځم و هغو خلکو ته ورسو چي د جماعت لمانځه ته نه حاضرېږي د هغوی کورونه په اور ور وسوزم. (٢)

---

(١) عن عبد الله بن عمر قال:قال رسول الله ﷺ: صلاة الجماعة تفضل صلاة الفذ بسبع وعشرين درجة رواه البخاري:.

(٢) مسلم عن أبي هريرة:.

رسول الله صلی الله علیه وسلم پر خپل اُمت ډېر مهربان دی البته څوک چي لمونځ په جماعت نه اداء کوي د هغو څخه ناراضه کيږي.

## څلوېښت لمونځونه په مسجد نبوي شريف کي

په مسجد نبوي شريف کي پرلپسې څلوېښت لمونځونه کول.

**عَنْ أَنَسِ بْنِ مَالِكِ رَضِيَ اللهُ عَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَى الله عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ صَلَّى فِيْ مَسْجِدِيْ هَذَا أَرْبَعِينَ صَلوٰةً لَا تَفُوْتُهُ الصَّلوٰةُ كُتِبَتْ لَهُ بَرَاءَةٌ مِنَ النَّارِ وَ بَرَاءَةٌ مِنَ الْعَذَابِ وَ بَرَاءَةٌ مِنَ النِّفَاقِ.**(۱)

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي: هر هغه کس چي زما په مسجد کي پرلپسې د څلوېښت وختو لمونځونه اداء کړي، پدې ډول چي په مينځ کي يو لمونځ ځني قضاء نسي نو هغه لره به د جهنم د اور څخه خلاصون، له عذابه څخه خلاصون، او له نفاق څخه خلاصون ليکل کيږي.

(۱) رواه أحمد و الطبراني: الفقه الحنفي في ثوبه الجديد: ج ۱ ص ۵۲۴ / فتاوی دارالعلوم زکريا: ج ۳ ص ۴۷۴ / فتاوی محمودية: ج ۱۰ ص ۴۴۱.

لکه څرنګه چې په حديث شريف کې مطلق لمونځ ذکر سوی دی او په جماعت اداء کول يې شرط نه دی په جماعت اداء کول يې د فضائلو څخه دي حديث شريف ته وګورئ د جماعت او د وختي لمانځه شرط نه لري که يوه ورځ د جماعت لمونځ درڅخه تېر سي او بې له جماعته دي اداء کړی دغه لمونځ دي هم په هغه څلويښتو لمونځو کې حساب دی.

دمسجد نبوي شريف د لمانځه ثواب د رسول الله صلى الله عليه وسلم

د وختو په مسجد پوري اختصاص نه لري بلکي دغه نوې برخه چې په ګډه سوې ده په ثواب کې فرق نه لري ځکه چې اوسنی ټول مسجد د رسول الله صلى الله عليه وسلم مسجد دی، د فضائلو او ثواب له اړخه يو مسجد بلل کيږي. (١)

---

(١) الشامي: ج ص ٣١۴/ غنية الناسك: ص ١۴٣ رد المحتار: ج ١ ص ٣٩۶ / الموسوعة الفقهية: ج ٣٧ ص ٢٥٢.

ځرنګه چي په حديث مبارک کي" مسجدي هذا "ويل سوی دی او مسجد هغه ځای ته ويل کيږي چي ټول کال او د هر وخت لمونځ پکښي کيږي او د معتکف اعتکاف پکښي صحيح کيږي او تر مسجد دباندي دائره که څه هم فرش پکښي هوار وي خو اعتکاف نه پکښي صحيح کيږي، دغه دباندي دائره کي د مسجد دحمامو او د اوداسه ځايونه دي او حايضاتي ښځي او موټران تلګ او راتلګ په کښي کوي.

او که ګڼه ګوڼه وه په مسجد کي، دننه ځای نه پيدا کېدی بيا په دباندي دائره کي لمونځ هم حکم د دننه حرم لري کامل ثواب لري خو کوښښ

کوئ چي دننه لمونځ وکړئ، ځکه هر وخت دننه مسجد شريف خالي وي

خو بې له عذره او د غفلت له وجهي د مسجد دباندي لمونځ مه کوئ.(۱)
اويو ساعت تر آذان دمخه مسجد شريف ته راځئ نو به مو ټول لمونځونه په داخل کي د مسجد شريف سي، که دننه مسجد خالي وي دباندي لمونځ کول، يا د مخ صفونه خالي وي د شا په صفو کي لمونځ کول،نو د لمانځه ثواب يې ناقص بلل کيږي، د امام صاحب مذهب مطابق لمونځ

---

(۱) پښتو معلم الحجاج: ص ۲۹۵.

يې مکروه دی، دعمره يانو په شپو کې دننه ټول مسجدنبوي شريف خالي وي لکن ځيني کسان دباندې لمونځونه کوي چې ورته ووايې چې محترم وروره دننه مسجد ټول خالي دی، دی محترم غلط جواب درکړي خو په دې نه وي خبر چې په مسجد کې د صفو اتصال او يووالی شرط دی، پام کوئ چې د مسجد نبوي شريف دباندې د اقتداء کولو په وخت کې د جماعت د لمانځه پر مهال داسې ځای ونه دريږئ، په طرف کې د باب السلام دباندې او په طرف کې د باب البقيع دباندې د بې خبرې حالت کې تر امام مخکې ونه دريږئ، ځکه که تر امام دمخه سئ لمونځ يې صحت نه لري باطل دی.(١)

او د ميلانو تر مابين په کوچنې صفو کې چې شپږ کسان کيږي لمونځونه

مه کوئ البته په لوی صفو کې لمونځ کوئ، چې لمونځ کوی ښه سم لمونځ‌به کوئ د خپله ځانه به حکم نه کوئ چې په داسې ګټه ګوټه کې هر رقم لمونځ صحيح دی، دغه څلوېښت ۴۰ لمونځونه چې داسې لوړ فضيلت لري هغه صحيح لمونځونه دي په ښه کامل اودس سره چې ټوله د لمانځه شرائط او ارکان يې پر صحيح طريقه او په ښه ارامه رکوع او

(١) الفقه على المذاهب الاربعة.

سجده ارامه ناسته او په ښه حضور او اطمينان سره يې اداء کړي وي، په دغه ځلوېښت لمونځو کي يو حکمت همدغه دی چي په راتلونکي وخت کي مسجد سره عادت ونيسي او خپل ټول لمونځونه په جماعت سره په مسجد کي اداء کړي، د دکان، دفتر، باغ او نورو ځايو د لمونځونو څخه منعه سي چي د مسجد امام صاحب يو رکعت کوي تاسو بيا ټول لمونځ اداء کړی وي.

هغه لمونځونه چي دي په مسجد کي په امام پسي اداء کړي دي هغه ټوله صحيح دي او هغه لمونځونه چي دي يوازي کړي دي او پر قرائت دي خوله نه وي ښورولې هغه لمونځونه دي صحت نه لري ځکه قرائت په خوله ويل فرض دی دخيال قرائت او په پټه خوله قرائت ويل صحت نه لري چي هر څو کاله دي همدغسي لمونځونه کړي دي او هر څومره لمونځونه چي وي په قضاء راوړلو يې مکلف يې دومره قدر به يې په زوره په خوله وايي چي په ځان به يې اوري.(١)

څوک چي د بې خوابۍ له وجهي په لمانځه کي بيده وي لمونځ يې صحت نه لري، او ده محترم ته دغه حکم نه دی ور معلوم چي په لمانځه کي

(١) نجم الفتاوى: ج ٢ ص ٣٤٩ .

ویښتوب شرط دی، که یو کس رکوع، سجده یا آخره ناسته په خوب کې اداء کړه دغه رکن یې ناحسابه دی، لمونځ یې فاسد سو بیرته به لمونځ راګرځوي، که یې را ونه ګرځوي او د دغه لمانځه وخت تېر سي قضاء بلل کیږي، د هغه ۴۰ لمونځونو څخه ووتی.

په لمانځه کې که یو چا اشاره درته وکړه چې در وڅکېږه یا را وڅکېږه یا که تر شاوې را مخته دې کړې یا که مخته وې را شا ته دې کړې نو که تا دده په حکم سره حرکت وکړی لمونځ دې فاسد سو، ځکه تعلیم او تعلم پکښې راغلی او که دی نا امیده سو بیا ته پخپله ځان ته وګوره، ځکه شرعًا مکلف یې که غلط ولاړ وې نو ځان به سم کړې بیا دې نو لمونځ نه فاسدیږي. (۱)

## پای جامه

پای جامه یعني پرتوګ یا لنګ تر بجلکو لوړ ساته، تر بجلکو لا ندې په ځړولو باندې الله تعالی ناراضه کیږي. رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل:
پا یڅې تر بجلکو لا ندې ځړونکې ته به الله تعالی د رحمت نظر ونه کړې. (۲)

---

(۱) الفقه الحنفي فی ثوبه الجدید: ج ۱ ص ۲۵٤وص ۲۵۵
(۲) بخاري شریف: ج ۲ ص ۸۶۱ مسلم شریف: ج ۲ ص ۱۹۴

## دعاء

د حجاجو او عمره یانو دعاء مستجابه ده هر چا ته چي دعاء وکړي هغه قبلیږي،امام جزري په حصن حصین کي لیکلي دي چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم د قبر مبارک سره دعاء قبوله نسي نو بل کوم ځای به قبلیږي؟ خو حلاله نفقه یې شرط دی باید د نفقې پر حلالیت ډېر کوښښ وکړو چي ټوله شیان مو صحیح او پر شرعه برابر سي، په حرامو پیسو باندي حج یاعمره کول هیڅ ثواب نه لري نو باید چي ډېر زیات کوښښ وسي تر څو په هر طاعت کي خصوصًا په حج او عمره کي د حرامو پیسو څخه استفاده و نسي نو باید د هغه ځایونو څخه چي دسړي مال یعني پیسې حرامي وي لکه سود ،رشوت، غلا یا د یتیمانو حق خوړل او داسي نورو ځایو څخه چي نفقه حراموي یعني هغه نفقه چي شریعت ورته حرام ویلي وي خپل ټول مالونه وساتو او که نفقه حرامه وه بیا هیڅ عبادت نه قبلیږي او نه حق خبره اوري که یې واوري نو عمل نه په کوي مونږ چي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم زیارت ته راغلي یو نو باید پر الصراط المستقیم ظاهرًا او باطنًا او پر شریعت او سنتو ځانونه برابر کړو.

# مكة مكرمة او مدينة منورة

مکه مکرمه او مدینه منوره د دنیا تر ټولو ښارونه غوره او افضل دي خو په دې کې اختلاف دی چې په دې دوو ښارونو کې کوم یو افضل دی زموږ په مذهب او د امام شافعي او امام احمد رحمهما الله په مذهب مکه مکرمه تر مدینې منورې افضله ده، د امام مالك رحمه الله په مذهب مدینه منوره تر مکې مکرمې افضله ده، خو دا اختلاف د رسول الله صلی الله علیه وسلم د مرقد او قبر مبارک څخه ماسېوا دی ځکه د مځکې هغه ټوټه چې د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم جسدمبارک پکښې خوندي دی هغه په اتفاق سره تر هر ځای افضل او مشرف دی، او تر مسجد الحرام، کعبې، عرش او تر کرسي هم افضل دی. (١)

په ډېرو احادیثو کې راغلي دي چې دوه رکعته نفل په مسجد نبوي شریف کې اداء کول د یوه حج ثواب لري او په مسجد قباء کې دوه رکعته نفل اداء کول د یوې عمرې ثواب لري. (٢)

---

(١) معلم الحجاج: ص ٢٩١ / مختار المناسک: ص ١٥٦ / ردالمحتار علی الدر المختار شرح تنویر الابصار: ج ٤ ص ٥٣.

(٢) جذب القلوب إلی دیار المحبوب: ص ١۶ / مناسک ملا علي قاري: ص٥٧٣ / غنیة الناسک: ص ٣٨٧.

بي بي عائشه صديقه رضي الله عنها وايي چي ټول ښارونه د عربو په زور فتح سوي دي مګر يو مدينه منوره په قرآن کريم سره فتح سوې ده نو په مدينه منوره کي روژې نيول، ډېر درود شريف ويل، قضائي لمونځونه راګرځول او د جمعې لمونځ کول ډېرفضيلت لري،په دغه سبب چي روژه او د جمعې لمونځ په مدينه منوره کي فرض سوي دي.

## په مسجد نبوي شريف کي د لمانځه فضيلت

د مځکي پر مخ د سپېڅلتيا له مخي ددغه (۳) درو مسجدونو؛ مسجد حرام، مسجد نبوي، مسجد اقصیٰ، څخه پرته نور مسجدونه د شرف له مخي کوم توپير نه لري.

رسول الله صلى الله عليه وسلم فرمائلي دي:

**لَا تُشَدُّ الرِّحَالُ إِلَّا إِلَى ثَلَاثَةِ مَسَاجِدَ اَلْمَسْجِدِ الْحَرَامِ وَمَسْجِدِ الرَّسُوْلِ ﷺ وَ مَسْجِدِ الْاَ قْصَى.** (۱)

ژباړه:ددرو مسجدونو يعني مسجدحرام،مسجد نبوي، او مسجد اقصیٰ

(۱) عن أبی هريرة رضي الله عنه : (متفق عليه)

څخه پرته نورو مسجدونو ته د سفر لپاره پر اوښو کتې نه تړل کیږي

نو ځکه د مسجد لپاره د یوه ښار څخه بل ښار ته سفر نه کیږي البته دا درې مسجدونه ځان ته خصوصي شرف لري.

رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

**صَلَاةٌ فِيْ مَسْجِدِيْ هَذَا خَيْرٌ مِنْ أَلْفِ صَلَاةٍ فِيْمَا سِوَاهُ إِلَّا الْمَسْجِدَ الْحَرَامَ.**(١)

ژباړه: زما په دې مسجد کې یو لمونځ کول د نورو مسجدونو په پر تله د لمانځه د ثواب له اړخه تر زرو لمونځونو غوره دي البته د مسجد حرام د لمانځه ثواب تر دې هم زیات دی.

او په مسجد نبوي شریف کې منفرد بې جماعته یو لمونځ یو په زرثواب لري چې په دننه مسجد کې وي په سړک او لارو کې نه وي او که په جماعت سره وي یو لمونځ په (٢٧٠٠٠) اوه ویشت زره درجې ثواب لري.

---

(١) متفق علیه: بخاري: رقم ١١٩٠ او مسلم: رقم ١٣٩٥.

ابو هریره رضي الله عنه روایت کړی دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي: زما په دې مسجد کي یو لمونځ کول د پنځوسو زرو لمونځونو سره برابر ثواب لري ماسېوا د مسجد حرام څخه.(۱)

ځرنګه چي په حدیث شریف کي مطلق لمونځ ذکر سوی دی نو دغه ثواب په دغه مسجدو کي یوازي په فرضو لمونځونو پوري نه دی ځانګړی بلکي د فرضو، نفلو لمانځه ماسېوا نور عبادتونه لکه اعتکاف، روژه یعني هر عبادت د پنځوس زره په اندازه ثواب لري.(۲)

په مسجد الحرام او مسجد نبوي شریف او یا بل مسجد کي خوراک او خوب کول د اعتکاف کوونکو لپاره پروا نه لري او د بل چا لپاره مکروه

دی، که څوک د خوب او خوراک اراده لري نو د اعتکاف نیت دي وکړي بیا پروا نه لري.(۳)

---

(۱) و روي ابن ماجة: صلاة في مسجدي هذا تعدل بخمسين ألف صلاة / مجامع المناسک: ص ۶۲۲ دارالعلوم دیوبند: ج ۶ ص ۴۴۵ / کفایت المفتي: ج ۵ ص ۳۷۵.

(۲) مجامع المناسک: ص ۶۲۶ / دارالعلوم دیوبند: ج۶ ص ۴۴۵ / وفاءالوفا: ج ۱ص ۴۲۱وص۴۲۳.

(۳) الشامي: ج ۲ ص ۱۴۶ / الموسوعة الفقهیة: ج ۳۹ ص ۲۰۹ / البحر: ج ۲ ص ۵۳۰.

# اصحاب الصفة

د اصحاب الصفة رضي الله تعالى عنهم ځای په مسجد نبوي کي دننه د مسجد د شمالي دېوال سره د هجرت په دوهم کال د رسول الله صلى الله عليه وسلم په امر هغه وخت جوړ سو چي قبله د بيت المقدس څخه بيت الله ته ګرځېدلې وه او کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم د هجرت په اووم کال د مسجد نبوي پراخېدل وکړه نو د اصحاب الصفه ځای د اسطوانة عائشه رضي الله عنها د شمال خواته د پنځمي تمبې سره سو چي دا اوس په موجوده وخت کي هم دی.

او دغه بله تنګاچه چي اوس د باب جبرائيل او باب النساء په مابين کي ده دا د دوی خپل د اوسېدلو ځای نه دی بلکي دا د ارغوات دتنګاچې په نامه سره یادیږي .(۱)

---

(۱) بيوت الصحابة: ص ۴۴.

(ارغوات) ارغوات هغه خصيان خلګ وه چي دحرمينو شريفينو دخدمت لپاره به حبشوو وقف کړي وه او دحرمينو شريفينو خدمت به يې کاوه.

# د جنة البقيع (هديرې) زيارت

دغه هديره په مدينه منوره کي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د زمانې په وخت کي موجوده وه بيا تر ننه پوري تقريبا لس زره صحابه كرام په دغه هديره کي دفن دي. (۱)

او په مدينه منوره کي د اُحد د شهيدانو ماسېوا د نورو صحابه كرامو معلومه هديره د جنت البقيع ښخه ماسپوا نسته تر مسجد نبوي شريف او روضې شريفي او د دوو اصحابو يعني ابو بكر صديق او عمر ابن الخطاب رضي الله عنهما تر زيارت وروسته، تر ټولو اهم مقام دغه جنة البقيع ده، د جنة البقيع زيارت ته هره ورځ خصوصاً بيا د جمعې په ورځ ورتلل مستحب دي. (۲)

---

(۱) غنية الناسک: ص۳۸٤ \ اللباب مع الشرح: ص ٥٦٩ \ وقال مالک رحمه الله : مات بالمدينة من الصحابة نحو عشرة الاف غير أن غالبهم لايعرف عين قبره ولاجهته.

(۲) يستحب أن يخرج كل يوم إلى البقيع بعد زيارة النبى صلى الله عليه وسلم وصاحبيه رضى الله عنهما فيزور القبور التى به خصوصا يوم الجمعة. الموسوعة الفقهية: ج ٣٦ ص ٣١٣ \ فتح القدير: ج ٣ ص ١٩٦ \ اللباب: ص ٥٦٩ \

په دې هدیره کې زیات د رسول الله صلی الله علیه وسلم بي بي ګاني، لوڼې او اهل بیت او ستر صحابه رضي الله عنهم، تابعین او تبع تابعین رحمة الله علیهم او بې شمېره آئمه او اولیاء الله په آرام کې دي خو د ډېرو صحابه کرامو د قبرونو نښې او نښانې یې لیرې کړې دي نو په مشخص ډول قبرونه نه دي معلوم په ځینو نقشو کې د ځینو کسانو د قبرو ځایونه ښودل سوي دي خو په داغه بقیع کې دفن دي.

په جنة البقیع کې د دریم خلیفه د قرآن کریم راټولوونکي حضرت عثمان رضي الله عنه د زیارت څخه شروع کول افضل دي، او د اسلام رڼا دده په وخت کې د خراسان سیمي ته رارسېدلې ده او په بقیع کې تر ټولو افضل د عثمان غني رضي الله عنه د آرام ځای دی، له ام المؤمنین بي بي خدیجې رضي الله عنها او بي بي میمونې رضي الله عنها څخه ماسېوا نورې ټولې ازواج مطهرات یعنې بیبیانې په همدې هدیره کې په آرام کې دي د رسول الله صلی الله علیه وسلم رضاعي یعنې د شیدو مور حلیمة السعدیة رضي الله عنها او د نبي کریم علیه السلام زوی سیدنا ابراهیم رضي الله عنه چې د ۱۷ میاشتو په عمر ؤ، بي بي فاطمة الزهراء رضي الله عنها او دنبي علیه السلام نورې لوڼې اوسیدناعباس بن عبدالمطلب

رضي الله عنه، حضرت امام حسن رضي الله عنه، زين العابدين رضي الله عنه محمد الباقر رضي الله عنه امام جعفر الصادق رضي الله عنه د نبي عليه السلام عمه ګاني؛ عاتكه،اروىٰ،صفيه رضي الله عنهن،عقيل بن ابي طالب رضي الله عنه، عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه، د عراق فاتح سعد بن وقاص رضي الله عنه، ابي سفيان بن الحارث رضي الله عنه، چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم د شيدو ورور دی، ابو هريره رضي الله عنه، ابو سعيد الخدري رضي الله عنه، عبدالله بن مسعود رضي الله عنه، صاحب د مذهب امام مالك رحمه الله عليه ، او نور ډېر جليل القدره صحابه كرام په همدغه جنة البقيع كي آرام كوونكي دي يعني دفن دي، جنة البقيع ته چي ورسئ دغه دعا ووایاست او رسول الله صلى الله عليه وسلم جنة البقيع هديرې ته تللی دی او هلته به يې داسي ويل: **اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُؤْمِنِيْنَ وَ أَتَاكُمْ مَا تُوْعَدُوْنَ غَدًا مُؤَجَّلُوْنَ وَ إِنَّا إِنْ شَاءَاللهُ بِكُمْ لَاحِقُوْنَ اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لِاَهْلِ بَقِيْعِ الْغَرْقَدِ، اَللّٰهُمَّ اغْفِرْ لَنَا وَ لَهُمْ.**(١)

(١) رواه مسلم: / غنية الناسک: ص ٣٨٤ / الفقه الاسلامي و أدلته: ج ٣ ص ٢٤٠٥ / اللباب مع الشرح : ص ٥٦٩.

ژباړه: السلام علیکم اې د هديرې اوسېدونكو مؤمنانو د قيامت په

ورځ به تاسو ټولو ته هغه څه درکول کيږي چې ستاسې سره يې وعده سوې ده، تاسې د حساب تر ورځې ځنډ يږئ او موږ هم ان شاء الله تاسو ته درتلوونکي يو، ستاسو سره يو ځای کېدوونکي يو اې الله! د بقيع غرقد و مړو ته بخښنه وکړه موږ او هغو ته بخښنه وکړه.

په بقيع کې حضرت عثمان رضي الله عنه ته په دې الفاظو سلام ووایاست السلام علیکم یا امیر المؤمنین ورحمة الله وبرکاته الله جل جلاله دې تا ته د اسلام او مسلمانانو لخوا د نیکۍ بدله درکړي، اې الله! ته له ده څخه راضي سې.

رسول الله صلی الله علیه وسلم چې دمدينې منورې د قبرونو سره تېرېدی قبرونو ته به يې مخ ور واړوه او داسې به يې وويل.

**اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ يَا أَهْلَ الْقُبُوْرِ يَغْفِرُ اللّٰهُ لَنَا وَ لَكُمْ أَنْتُمْ سَلَفُنَا وَ نَحْنُ بِالأَ ثَرِ**.(۱)

---

(۱) رواه الترمذي:عن ابن عباس قال: مر رسول الله صلی الله علیه وسلم بقبور المدينة فاقبل عليهم بوجهه فقال السلام عليكم يا اهل القبور الخ حديث: ۱۰۵۳

ژباړه: السلام علیکم اې د قبرو خاوندانو الله تعالی دې موږ او تاسې ته مغفرت او بخښنه وکړي تاسو تر موږ مخکې تللي یاست او موږ هم درپسې یو.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دی وایي هر کس چې یوې هدیرې ته ورسي او ۱۱ واره سورة الاخلاص یعني«قُلْ هو الله آحد» سورة ووایي او ثواب یې و ټولو مړو ته د هدیرې ور وبخښي نو الله پاک

به د دغه مړو په شمېر وده ته ثواب ورکړي، او په سر او پای کې یې درود شریف ووایاست.(۱)

(۱) مجمع الفوائد: فضائل سورة الاخلاص: ص ۱۰۲

# د مسجد قباء بیان

مسجد قباء اول مسجد دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم يې په خپلو مبارکو لاسونو بنیاد کښېښود، داسلام په تاریخ کې همدغه مسجد تر ټولو مخکې ودان سوی دی رسول الله صلی الله علیه وسلم چې په لومړي ځل مدینې منورې ته تشریف راوړی د مدینې منورې د ښار څخه دباندې د بنو عمرو بن عوف د قبیلې په کلي یعنې د قباء په کلي کې څوارلس ورځې پاته سو، هلته يې د قباء مسجد بنیاد هم کښېښودی او هلته يې لمونځونه هم پکښې وکړه، قباء په اصل کې د یو څاه نوم دی چې دغه منطقه په همدغه د څاه په نامه سره مشهوره وه.

مسجد قباء هغه مسجد دی چې د اولې ورځې څخه د تقوا پر بنیاد جوړ سوی دی او حقداره دی، الله تعالی د دې مسجد یادونه په قرآن پاک کې کړې ده، دغه مسجد تر مسجد الحرام ، مسجد نبوي اومسجدالا قصیٰ وروسته افضل مسجد دی، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي: کوم کس چې په کور کې اودس وکړي مسجد قباء ته راسي دوه رکعته لمونځ اداء کړي د یوې عمرې ثواب لري ځکه د شنبې په ورځ رسول الله صلی الله علیه وسلم د سهار په وخت کې کله پیاده او کله پر سپرلۍ ورته راتلی او دوه رکعته لمونځ به يې پکښې اداء کاوه، او مسجد قباء

ته هره ورځ او هر وخت ورتلل او هلته لمونځ اداء کول مستحب دي،دصحيح حديث له مخي ديوې عمرې ثواب لري.

**قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: مَنْ تَطَهَّرَ فِيْ بَيْتِهِ ثُمَّ أَتىٰ مَسْجِدَ قُبَآءَ فَصَلّىٰ فِيْهِ صَلَاةً كَانَتْ لَهُ كَأَجْرِ عُمْرَةٍ.**(۱)

ژباړه: رسول الله ﷺ فرمايي:څوک چي په کور کي اودس وکړي مسجد قباء ته راسې او هلته نفل لمونځ وکړي،نوديوې عمرې ثواب لري.

رسول الله صلی الله عليه وسلم په قباء کي د څوارلسو ورځو تېرولو وروسته د مدينې منورې د ښار پر خوا د خپلو ماما خيلو او نورو صحابه

کرامو په بدرګه کوچ را وه کړ، د جمعې په ورځ په لاره کي وو چي دجمعې دلمانځه وخت پر راغلی بيايې دجمعې لمونځ دقبا پرلار په هغه ځای کي ادا کړی چي اوس مسجد جمعه دی دلمانځه څخه وروسته رسول الله صلی الله عليه وسلم پر اوښه سپور سو او وې فرمائل: چي تاسو زما اوښه مخته پرېږدئ داماموره ده بيانو چيري چي مسجد نبوي جوړ سوی دی هلته يې اوښه چوخ سوه رسول الله صلی الله عليه وسلم وويل: ان شاءالله

---

(۱) رواه ابن ماجه بسند صحيح، غنية الناسک: ص۳۸۷ / اللباب مع الشرح: ص ۵۷۲ / معلم الحجاج: ص ۳۳۵.

همدا مو ځای دی، دلته نژدې د ابو ایوب انصاري رضي الله عنه کور ؤ هلته په هغه کور کې هستوګن سو، ابوایوب انصاري رضي الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ماماخیلو څخه کیږي اومسجد قباء د مسجد نبوي په جنوب کې تقریبا (۳۲۰۰) درې زره او دوه سوه متره لیرې واقع دی.

## د سید الشهداء سیدنا حمزه رضي الله عنه بیان

د أُحد شهیدانو، مسجدونو او د أُحد غره ته ورتلل مستحب دي. (۱)

افضله ورځ د دغه شهیدانو د زیارت لپاره د پنجشنبې ورځ ده او دا هغه غر دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یې په هکله فرمایلي دي:
**هَذَا جَبَلٌ يُحِبُّنَا وَ نُحِبُّهُ**. (۲)

ژباړه: أُحد هغه ښکلی غر دی چې دی زموږ سره محبت لري موږ دده سره محبت لرو او همدارنګه رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمایي:
**أُحُدٌ عَلىٰ رُكْنٍ مِنْ أَرْكَانِ الْجَنَّةِ**

ژباړه: د أُحد غر د جنت د کونجانو څخه پر یو کونج دی .

(۱) تفسیر قرطبي: ج ۹ ص۳۱۲ / البدایة والنهایة: ج ٤ ص ٦٥ / دلائل النبوة: ج ٦ ص ۳۰٦ /

(۲) رواه البخاري:

رسول الله صلی الله علیه وسلم چې مدینې منورې ته هجرت راوکړ نو د جهاد حکم ورته وسو، رسول الله صلی الله علیه وسلم په ډېرو سنګرو کي د کافرانو سره وجنګېدی، د رسول الله صلی الله علیه وسلم په غزاګانو کي یوه د اُحد غزا وه د همدې غره په لمن کي د شوال په میاشت کي په دریم هجري کال کي سوې ده، رسول الله صلی الله علیه وسلم له مدینې منورې څخه راووتی او د اسلام د جنګیالیو سره د اُحد غره ته ولاړی سره له دې چي د مسلمانانو شمېر کم وو، خو په جبل الرماة غونډۍ کي د اُحد د غزا په ورځ پنځوس کسان صحابه کرام د عبدالله بن جبیر رضي الله عنه په مشرۍ نبي کریم صلی الله علیه وسلم هلته کښېنولي وه او دغه غونډۍ د اُحد د شهیدانو په جنوب طرف کي د هدیرې د دروازې پر مخامخ د وادي القناة شېلې پر څنګ واقع ده، په لومړي سر کي یې بری په برخه سو، وروسته چي ځیني غازیان د غنیمت په مال پسي ولاړه کفارو یرغل راوړ، د اُحد د جنګ ورځ د مسلمانانو سخته ورځ وه، خو د الله جل جلاله په مرسته د مکې د مشرکانو لښکر د جنګ ډګر پرېښود او بیرته مکې ته راوګرځېدل، په دې غزا کي مؤمنان ډېر ژوبل سول، چي خپله رسول الله صلی الله علیه وسلم هم پکښي سخت زخمي سو او اویا

تنه جليل القدره صحابه پکښې په شهادت ورسېدل، د شهيدانو په جمله کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم بهادراکا سيدنا حمزه رضي الله عنه هم وو، کوم چې رسول الله صلى الله عليه وسلم د شهيدانو د قافلې سردار، سيد الشهداء او لوى مجاهد في سبيل الله بللى دى، د جنګ څخه وروسته ځينو کسانو خپل شهيدان مدينې منورې ته انتقالول، خو بيا د رسول الله صلى الله عليه وسلم حکم وسو چې ټول شهيدان دلته د اُحد د غره په لمن کې دفن کړئ، همداسې وسول په بېلابېلو شاميو کې دفن کړه سول، سيدنا حمزه رضي الله عنه د اُحد په غزا کې د ۵۷ کلنۍ په عمر شهيد سو او په مکه مکرمه کې يې د ابو جهل سره مقابله هم کړې وه او د حضرت رسول الله صلى الله عليه وسلم ملا تړى وو او د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره يې مدينې منورې ته هجرت وکړ.

د اُحد غر د دې نړۍ د مبارکو ځايونو څخه دى او دا جبل اُحد په دې بولي چې دا غر يوازې دى د بل غره سره نه دى موښتى، اوس نو لومړى د سيد الشهداء حضرت حمزه رضي الله عنه زيارت وکړئ او په ډېره خشوع او ادب سره سلام ورته ووايااست رسول الله صلى الله عليه وسلم پر سيدناحمزه رَضِيَ اللهُ عَنْهُ باندې ډېر زيات ژړلي دي اودهغه سره عبدالله بن

جحش او مصعب بن عمیر رضي الله عنهما په یوه شامیې کې دفن سوي دي هغوی ته هم سلامونه ووایاست، بیا د نورو شهیدانو زیارت وکړئ، او سلامونه ورته ووایاست، په معتمدو روایاتو ثابته ده چې حضرت ابو بکر صدیق او حضرت عمر فاروق رضي الله عنهما به هم دلته تشریف راوړی او تاسو هم دغه قدرمنو شهیدانو ته په مسنونه طریقه ورسئ او سلام ورته عرض کړئ. د هغو لپاره د الله تعالی څخه د مغفرت او رحمت دعاء وغواړئ او د الله جل جلاله او رسول الله صلی الله علیه وسلم سره د رښتني وفادارۍ او پر دین د استقامت لپاره ځانته دعاء وغواړئ، د اُحد غر د مسجد نبوي شریف څخه څلور کیلو متره لیرې د شمال په طرف کې واقع دی، د مسجد نبوي شریف باب ملک الفهد ۲۲ نمبر دروازه د اُحد پر غره برابره ده.

## د سبعة المساجد (اووه مسجدونو) بیان

مساجد الفتح چې اوس په سبعة المساجد سره مشهور دي دغه مسجدونه د جبل السلع غره په لمن کې په لویدیز طرف کې پر هغه ځای جوړ سوي دي چې پر هغه ځای باندې رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام رضي الله تعالی عنهم د خندق د غزا په وخت کې موجود وه.

رسول الله صلی الله علیه وسلم چي خېمه مبارکه درولې وه په جبل السلع کي لږ لوړه وه او د لمانځه او مشورې ځای وو او هلته یې د کفارو د شکست لپاره درې ورځي پرلپسې ښېراوي کولې د فتح موندلو لپاره د ښېرا په دریمه ورځ باندي جبرائیل علیه السلام د فتح زیری ورته راوړی، رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام رضي الله تعالی عنهم پر دښمن په څلورمه ورځ چي د چهارشنبې ورځ وه فاتحان او کامیاب سول، او دغه د خېمې مبارکي پر ځای چي کوم مسجد جوړ دی له همدې وجهي دغه مسجد ته مسجد الفتح وایي ځکه فتح یې په برخه سوه، د مسجد الفتح لاندي دوهم مسجد د سلمان فارسي رضي الله عنه دی چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم مستشار وو، دریم مسجد د ابوبکر صدیق رضي الله عنه مسجد دی، څلورم مسجد د عمر فاروق رضي الله عنه دی، پنځم مسجد د حضرت علي کرم الله وجهه دی، شپږم د حضرت سعد بن معاذ رضي الله عنه دی.

او دغه بل مسجد چي د فاطمة الزهراء رضي الله عنها په نامه یادیږي اصل نه لري ځکه دا د شیعګانو درواغ دي او په سنه ۱۴۲۸ هجري قمري کي یو غټ مسجد د مسجد الخندق په نامه جوړ سو چي د ابوبکر

الصديق رضي الله عنه مسجد يې په ګډه کړی او د جبل السلع غر د مسجد نبوي شريف څخه تقريبا (۷۰۰)متره ليري واقع دی، اووم مسجد بني حرام دی د صحابه کرامو رضي الله تعالیٰ عنهم په زمانه کي جوړ سوی دی او دغه مسجد د بني حرام د قبيلې دی، او د جبل السلع په لوېديز طرف کي او د سبعة المساجد په جنوب طرف کي د مسجد الفتح څخه تقريبا (۵۰۰) متره ليري او د جبل السلع په طرف کي په يوه کوڅه کي واقع دی چي اوس پنځه وخته لمونځونه پکښي اداء کيږي.(۱)

## د خندق اندازه

دخندق دغزا لپاره خندق دمسجد مستراح سره نژدې شروع سويدی، بيا دجبل الذباب په شمال کي تېرسويدی بيا جبل السلع ته نژدې مساجد الفتح ته مخامخ رسېدلی دی.

د خندق د غزا لپاره د خندق اندازه تقريبا (۲۵۰۰) متره اوږد او (۴) متره برداره او (۳) متره ژور وو.(۲)

(۱) تاريخ مدينة المنورة: ص ۹۸

(۲) تاريخ مدينة المنورة: ص ۹۶

# د مسجد قبلتین بیان

رسول الله صلی الله علیه وسلم د نبوت د اولي ورځي څخه بیا تر هغه وخته چي مدینې منورې ته یې هجرت راکاوه لمونځونه یې دکعبې شریفي و لور ته کول څه مهال چي یې مدینې منورې ته په هجرت سره تشریف راوړی، امر پر وسو چي لمونځونه د بیت المقدس و لور ته کوه نو حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم (۱۸) میاشتي اووه ورځي لمونځونه د بیت المقدس و خوا ته کول، او په یو بل روایت کي راغلي دي چي(۱۶)یا (۱۷)میاشتي یې لمونځونه د بیت المقدس و خوا ته کول بیت المقدس د مدینې منورې د شمال خوا ته راځي او مکه مکرمه د مدینې منورې د جنوب خوا ته راځي، رسول الله صلی الله علیه وسلم او صحابه کرام د بیت المقدس و طرف ته د جماعت پر لمانځه ودرېدل د ماپښین وخت وو، رسول الله صلی الله علیه وسلم جماعت ورکاوه کله چي دریم رکعت ته راولاړ سو وحي راغلې او د مخ د ګرځولو حکم ورته وسو او په همدغه لمانځه کي رسول الله صلی الله علیه وسلم خپل مخ مبارک د بیت المقدس څخه د مکې مکرمې و خوا ته وګرځوی، سره له مقتدیانواخر دوه رکعته یې دکعبې شریفي و طرف ته اداء کړل، د

مقتدیانو له جملې څخه لس صحابه کرام یعني عشره مبشره وه چي په لمانځه کي یې له کومي خبري پرته په هغه رکعت کي فوراً په رسول الله صلی الله علیه وسلم پسي مخونه د کعبې شریفي خوا ته راوګرځول او دوی ته د جنت زیری راغلی، او رسول الله صلی الله علیه وسلم د جنت

زیری پر وکړی نومونه یې په دې ډول دي.

١ - ابو بکر الصدیق رضي الله عنه ٢ - عمر الفاروق رضي الله عنه ٣ - عثمان بن عفان رضي الله عنه ۴ - علي بن ابي طالب رضي الله عنه ۵ - طلحة بن عبیدالله رضي الله عنه ۶ - زبیر بن العوام رضي الله عنه ٧ - عبدالرحمن بن عوف رضي الله عنه ٨ - سعد بن ابي وقاص رضي الله عنه ٩ - سعید بن زید رضي الله عنه ١٠- ابو عبیده بن عامر جراح رضي الله عنه دوی ټول عشره مبشره د قریش او مهاجرینو څخه دي.(١)

(١) تاریخ مدینة المنورة: ص ١٦٤ خلاصة فضائل المدینة المنورة: ص ١٣٩

کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم ته د بیت المقدس ځخه و مکې مکرمې ته د مخ ګرځولو امر وسو د بدر غزا ځخه دوې میاشتې وړاندې د دوشنبې ورځ وه ۱۵ د رجب المرجب وه او د هجرت دوهم کال وو، په دې مسجد کې دوه محرابه جوړ سوي دي یو محراب د بیت المقدس و خوا ته او بل د کعبې شریفې و خوا ته جوړ سوی دی، همدا مسجد د قبلتین په نامه یادیږي په دغه سبب چې دا مسجد دوې قبلې لري، دا مسجد د خالد بن ولید رضي الله عنه پر سړک د مسجد نبوي شریف ځخه درې نیم کیلو متره لیري واقع دی.

## د مسجد الجمعة بیان

د دې مسجد شریف دوه نومونه نور هم دي، مسجد الوادي او مسجد عاتکه، دا هغه مسجد دی چې کله رسول الله صلی الله علیه وسلم له مسجد قباء ځخه مدینې منورې ته تشریف راوړی نو ده مبارک صلی الله علیه وسلم لومړی ځل د جمعې لمونځ په همدغه ځای کې اداء کړی، بیا پر دغه ځای دا مسجد شریف جوړ کړل سو، په دې سبب دا مسجد شریف د مسجد الجمعة په نامه یادیږي او دغه مسجد شریف د مسجد

قباء څخه د شمال په خوا کي دی، چي د مسجد نبوي شريف څخه د قباء په لور روان سې نو په لار کي راځي او د مسجد قباء څخه تقريبا ۹۰۰ سوه متره ليري واقع دی.(۱)

## د مسجد غمامة بيان

دا مسجد پر هغه ځای جوړ دی چي پر هغه ځای باندي رسول الله صلی الله عليه وسلم د اختر لمونځ کړی وو او د خطبې ويلو په وخت کي وريځي سايه پر کړې وه او دغه مسجد شريف د مسجد نبوي شريف په جنوب غرب طرف کي باب السلام ته نژدې په څو متره کي واقع دی.(۲)

## د مسجد الإجابة بيان

مسجد الإجابة ته رسول الله صلی الله عليه وسلم يوه ورځ تشريف راوړی او لمونځ يې پکښې اداء کړی چي تر ډېره لاس په دعاء وو تر څو چي يې

---

(۱) المدينة المنورة تاريخ ومعالم: ص ٦٤

(۲) المدينة المنورة تاريخ ومعالم: ص ٧٧

دعاء قبوله سوه، مسجد الإجابة د جنت البقيع په شمال کي مستشفى الانصار ته مخامخ دى.(۱)

## د مسجد ابي ذر رضي الله عنه بيان

مسجد ابي ذر الغفاري رضي الله عنه چي اوس د مسجد السجدة په نامه سره ياديږي،دغه مسجد دمسجد نبوي شريف په شمال طرف کي تقريبا (۹۰۰) متره ليري د تکسي اډې وځنګ ته واقع دى، په دغه مسجد کي رسول الله صلى الله عليه وسلم هغه وخت د شکر سجده وکړه چي جبرائيل عليه السلام دا زيرى ورته راوړى چي الله جل جلاله فرمايي چي کوم څوک چي پر تا باندي درود شريف وايي زه رحمت پر کوم او کوم څوک چي پر تا باندي سلام ووايي زه سلام پر کوم.(۲)

---

(۱) د حج او عمرې مسئلې: مولانا محمد رفعت قاسمي حفظه الله ص ٤٥٨

(۲) المدينة المنورة تاريخ ومعالم: ص ٦٦

## د مسجد المستراح بيان

مسجد المستراح يا مسجد بني حارثه دا هغه ځای دی چي رسول الله صلی الله عليه وسلم د اُحد د غزا څخه د را تللو په مهال کي دلته د هوسايي او استراحت په خاطر کښېنستلی دی او لمونځ يې پکښې اداء کړی دی، دا مسجد د مسجد نبوي شريف څخه ۲ کيلو متره ليري د

شمال په خوا کي د سيد الشهداء پر زاړه سړک واقع دی چي اوس پنځه وخته لمونځونه پکښې اداء کيږي.(۱)

## د مسجد سقيا بيان

مسجد سقيا په عنبريه کي د مسجد نبوي شريف د جنوب غرب خوا ته په سکة الحديد کي دننه و ښاروالۍ ته مخامخ دی، سقيا د يو څاه نوم دی چي د سعدبن ابي وقاص رضي الله عنه په مځکه کي وو دغه مسجد سقيا پر هغه ځای جوړ سوی دی چي پر هغه ځای باندي رسول الله صلی

الله عليه وسلم د بدر غزا ته د تللو په وخت کي لمونځ کړی دی او د

---

(۱) تاريخ مدينة المنورة: ص ۹٤

مدينې منورې لپاره يې د برکت دعاوي کړي دي.[1]

## د مسجد الميقات بيان

مسجد الميقات چې مسجد ذي الحليفة او مسجد الشجرة او مسجد المحرم هم ورته ويل کيږي نبي کريم صلى الله عليه وسلم چې به کله مکې مکرمې ته تلی نو په دغه مسجد کې به يې لمونځ کوی او چې کله به بيرته له مکې مکرمې له خوا راستون سو نو دلته به يې لمونځ وکړی او شپه به يې هم تېرول او د مدينې منورې د خلکو لپاره مسجد ذوالحليفة ميقات هم دی چې اوس دابيارعلی په نامه يادېږي او د مسجد نبوي شريف څخه تقريبا ۱۲ کيلو متره ليري دی.

## د مسجد علي رضي الله تعالی عنه بيان

دا مسجد د مسجد غمامه په شمال غرب کې پر هغه ځای جوړ سوی دی چې پر هغه ځای باندې رسول الله ﷺ او بيا حضرت علی رضی الله تعالی عنه د اختر لمونځ کړی دی.[2]

---

[1] تاريخ مدينة المنورة: ص ٥٤

[2] المدينة المنورة تاريخ ومعالم: ص ٨٤

## د مسجد ابوبکر الصديق رضي الله تعالى عنه بيان

دمسجد غمامه څخه څلویښت متره لیري پر هغه ځای باندي جوړ سوید

ی چي پرهغه ځای باندي رسول الله ﷺ دعیدګاه لمونځ کړی دی او

وروسته بیا ابو بکر الصدیق رضي الله تعالى عنه هلته دعیدګاه لمونځ کړی

دی.(۱)

## د بئر حا بیان

بئر حا دا څاه د حضرت طلحة رضي الله عنه وو او دده په باغ کي وو چي

د مسجد نبوي شریف په شمال کي وو او رسول الله صلى الله علیه وسلم

به هلته ورتلی او د دغه څاه اوبه به یې څښلې او اوس دغه څاه نسته په

مسجد نبوي شریف ګډه سوی دی چي ځای یې اوس هم معلوم دی پر باب

ملک فهد ۲۱ نمبر دروازه چي مسجد ته داخل سی د دروازې څخه څو

متره لیري په چپه لاس کي دی چي پر هغه ځای باندي په ډبرین فرش کي

درې ګول دائرې جوړې دي.

(۱) تاریخ مدینة المنورة: ص ۵۸

## د بئر غرس بیان

بئر غرس دا هغه ځاه دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم به ددغه ځاه اوبه چښلې او دا وصیت یې کړی وو چي ما ته تر وفات وروسته ددغه ځاه په اوبو باندي غسل را کړئ او بیا ددغه ځاه په اوبو باندي غسل ور هم کړل سو، او دغه ځاه د مسجد قباء په شمال شرق د دارالهجرة مدارس الشاوي وخنګ ته نژدې واقع دی.(۱)

## د بئر رومة بیان

بئر رومة چي په بئرعثمان بن عفان رضي الله عنه مشهوره دی دا هغه ځاه دی چي کله رسول الله علیه وسلم مدینې منورې ته تشریف راوړی او په دغه وخت کي په مدینه منوره کي ددغه ځاه څخه ماسېوا نوري خوږې اوبه نه وې او دغه ځاه د یو یهودي وه، اوبه به یې خرڅولې بیا رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: څوک چي دغه ځاه رانیسي او د مسلمانانو لپاره یې وقف کړي زه د هغه لپاره د جنت اعلان کوم نو دغه ځاه سیدنا عثمان بن عفان رضي الله عنه رانیوی او د مسلمانانو لپاره

(۱) مناسک الملا علي قاري: ص ۴۹۵

يې وقف کړه چې اوس هم موجود دی او مسجد قبلتين څخه تقريبا (۱۰۰۰) متره ليرې دسلطانه پر سړک په الازهري کلې کې واقع دی.(۱)

## د توبې بيان

هر څوک که له ګناه څخه توبه وکاږي نو الله جل جلاله يې توبه قبلوي البته له ګناهونو څخه به پر هيز کوي لکه څنګه چې الله جل جلاله فرمايلي دي:

**يَاأَيُّهَا الَّذِيْنَ ءَامَنُوْا تُوْبُوْاإِلَى اللهِ تَوْبَةً نَّصُوْحًا** (۲)

ژباړه: اې مؤمنانو !الله ته توبه وباسئ، خالصه توبه. يعني رښتينې توبه .

توبه تر هغه وخته قبليږي چې لمر د مغرب لخوا څخه نه وي را پورته سوی او يا د بعضې علماء په قول چې د يو انسان روح ستوني ته نه وي

---

(۱) تاريخ مدينة المنورة: ص ۱۳۰

(۲) سُورَةُ التَّحْرِيم: (۸)

راغلی او که لمر د مغرب لخوا څخه را پورته سي او يا د يو انسان روح

وستوني ته راورسيږي يعني د ځکندن حالت يې سي نو په همدې وخت کي يې دبعضي علماء د قول مطابق توبه نه قبليږي.

توبه ډېره اسانه ده هغه دا چي پر کړل سوي ګناه پښېمانه کېدل او هغه

ګناه نور پرېښول او په راتلوونکي وخت کي د نه کولو قصد کول او الله جل جلاله! د بنده په توبه ډېر راضي کيږي، رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمائلي دي:

په الله قسم چي الله جل جلاله د خپل بنده په توبه تر دې ډېر خوشحاله کيږي لکه په تاسو کي چي يو څوک ورکه سپرلۍ په دښت کي پيدا کړي.(١)

(١) رواه مسلم:

# د اووه ویشتم د عمرې بیان

یوه خاصه او اړینه خبره چي په صحیحو احادیثو سره ثابته ده لکه د روژې عمره، د روژې عمره د اول ساعت څخه بیا د روژې د میاشتي تر اخیري ساعت پوري سره برابره ده، د داسي حج سره برابریږي لکه تا چي د رسول الله صلی الله علیه وسلم سره حج کړی وي، لکن عوام غلط قیاس کوي په اووه ویشتم پوري خاص ارتباط ورکوي، هغه عام فضل الٰهي ته نظر نه کوي چي په شپه او ورځ او ټوله میاشت کي د روژې د عمرې همدغه ثواب دی، د اووه ویشتم په شپه په ډېره ګڼه ګوڼه کي عمره وکړي، چي بعضي کسان په جده، طائف او مدینه منوره کي سر وخروي چي د امام ابو حنیفه رحمه الله د مذهب مطابق دم پر لازمیږي او د بعضو کسانو څخه د اووه ویشتم د عمرې په سبب لمونځونه خراب یا قضاء سي، او چي هرڅه عمرې وکړي ددغه لمانځه جبیره چي قضاء سي نه په کیږي ولي عمره سنت ده لمونځ فرض دی تر دغسي عمرو چي په (۲۷) کیږي د روژې په میاشت کي عمرې کول چي په آرامه او پر شریعت برابري وي افضل دي، عُمره په ټول کال کښي جائزه ده مګر د عرفات په ورځ عمره کول مکروه تحریمي عمل دی، او همدارنګه د اختر په ورځ او

درې ورځې وروسته د اختر تر ورځې عمره مکروه تحريمي ده، ځکه چې دا د حج ورځې دي، او عمره د قارِن حاجي لپاره د عرفات په ورځ مکروه نه ده،او متمتع حاجي لره د عمرې تکرار جائز دی ځکه دا يو مستقل عبادت دی. (۱)

ډيري عمرې کول ښه کار دی که څه هم په يوه ورځ کېښي وي، او کوم چا چي عمره د متمتع حاجي لپاره ګناه بللې ده، دغه خبره يې د قرآن او سنت څخه مخالفه ده. (۲)

---

(۱) حج قران هغه حج ته وايي چي دعمرې او حج دواړه احرام پر يوه ځای باندي وتړي او دواړه په يوه احرام سره اداء کړي . الموسوعة الفقهية: ج ۱۷ ص۴۲/ غنية الناسک: ص ۲۰۱

او حج تمتع هغه حج ته وايي چي د ميقات څخه د عمرې احرام وتړي او بيا دعمرې څخه دفارغ کېدلو وروسته دحج لپاره احرام وتړي. الهندية: ج ۱ ص ۲۳۸ / اللباب: ص ۲۹۸ /

(۲) قاضي خان: ج ۱ ص۳۰۱ / إرشاد الساری: ص ۲۸۹ / فقه الاسلامي: ج ۳ ص / العلاج في امراض الحُجّاج: ص ۱۹۲

# ابي قُبيس غر

ابراهيم عليه السلام چي کله د بيت الله د ترميم څخه فارغ سو الله جل جلاله امر ورته وکړ چي خلکو حج ته راوبوله نو دى مبارك د ابي قُبيس غره ته وختى او خلکو ته يې آواز وکړ چي بيت الله ته د حج لپاره راسئ !دغه نعره يې الله تعالىٰ د ټولو خلکو تر غوږو پوري ورسوله، آن تر دې هغه شخص که به د پلار په ملا کښي ؤ، او که به د مور په رِحم کښي ؤ، هرچا چي هر څو واره جواب په" لبيك "سره ورکړى وي د هغه په اندازه به حجونه کوي. (١)

جبل ابي قُبيس دا غر دمسجدالحرام د شرق په طرف کي دصفا دغونډۍ

سره نژدې هغه غر دى چي دحضرت نوح عليه السلام پر قوم باندي دطوفان دراتللو په وخت کښي الله جل جلاله حجر اسود دامانت په توګه په همدغه غره کښي ايښي وه او په همدغه وجه باندي دې غره ته تر اسلام مخکي دآمين په نامه ويل کېده او تقريباً (١٢٠) متره لوړ دى او دمځکي پر مخ لومړنى غر دى. (٢)

---

(١) العلاج في امراض الحُجّاج: ص ٥

(٢) مكة المكرمة تاريخ ومعالم: ص ١١٠

بسم الله الرحمن الرحيم

نَحْمَدُهُ وَ نُصَلِّيْ عَلىٰ رَسُوْلِهِ الْكَرِيْمِ.

## د حج فضليت

حج د اسلام يو عظيم الشان رکن دی ، د اسلام د کامليدو اعلان د حجة الوداع په موقع باندې وسو او په حج سره د اسلام د ارکانو تکميل کيږي.

د حج د فرضيت اثبات په قرآن کريم باندې سوی دی، الله تعالیٰ په خپل کلام قرآن کريم کي فرمايي: وَلِلّٰهِ عَلَى النَّاسِ حِجُّ الْبَيْتِ مَنِ اسْتَطَاعَ اِلَيْهِ سَبِيْلاً
آل عمران : آية: ۹۷

ژباړه: د الله جل جلاله لپاره پرخلکو حج فرض دی کوم څوک چي د حج توان او طاقت ولري.

د حج په فضيلت کي زيات احاديث راغلي، د هغوی له جملي څخه يو څو حديثونه ذکر کيږي:

**١ –عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ: خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ، فَقَالَ: «أَيُّهَا النَّاسُ قَدْ فَرَضَ اللهُ عَلَيْكُمُ الْحَجَّ، فَحُجُّوا» فَقَالَ رَجُلٌ: أَكُلَّ عَامٍ يَا رَسُولَ اللهِ؟ فَسَكَتَ حَتَّى قَالَهَا ثَلَاثًا، فَقَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: " لَوْ قُلْتُ: نَعَمْ لَوَجَبَتْ، وَلَمَا اسْتَطَعْتُمْ "**(١)

ژباړه: دحضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دی چې رسول الله صلی الله عليه وسلم موږ ته وينا کوله او ويې فرمايل: الله جل جلاله پر تاسو حج فرض کړی دی نو حج وکړئ، يوسړي(اقرع بن حابس) رضی الله عنه عرض وکړی: اې د الله رسوله ! حج يوازي يو ځل فرض دی او که هر کال رسول کريم صلی الله عليه وسلم د يو څه وخت لپاره خاموش سو هغه صحابي درې ځله هغه سوال را مکرر کړ، نو رسول کريم صلی الله عليه وسلم د ناراضوالي اظهار وکړ او ويې فرمايل: که چيري ما دا سي ويلي واى: چي هر کال فرض دی بيا به هر کال فرض واى ليکن تاسو به يې طاقت نه درلودلای، بيا يې وفرمايل: يوازي يوځل حج فرض کيږي.

(١) رواه مسلم: كتاب الحج، باب فرض الحج مرة فى العمر (١٣٣٧).

**٢ -عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ، قَالَ: قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: «مَنْ أَرَادَ الْحَجَّ فَلْيَتَعَجَّلْ»** (١)

حضرت ابن عباس رضی الله تعالٰی عنه روایت کوي

چې رسول کريم صلی الله عليه وسلم وفرمايل: څوک چي د حج اراده وکړي، نو د هغه په اداء کولو کي دي ډېر تلوار کوي.

**٣–** رسول الله صلي الله عليه وسلم فرمايلي:

**«مَنْ حَجَّ لِلّٰهِ فَلَمْ يَرْفُثْ، وَلَمْ يَفْسُقْ، رَجَعَ كَيَوْمٍ وَلَدَتْهُ أُمُّهُ»**(٢)

ژباړه: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: څوک چي دالله تعالی لپاره حج وکړي او په حج کي بېهوده خبري، د فسق خبري او کارونه ونه کړيَ نو هغه به دګناه څخه داسي پاک راستون سي لکه له مور څخه چې اوله ورځ پيدا سوی وي.

---

(١) ابوداؤد: کتاب المناسک: ج ١ ص٢٤٢.
(٢) بخاري: ج١ ١ ص ٢٠٦ و مسلم: ج١ ص٤٣٦.

٤ -وَالحَجُّ المَبْرُورُ لَيْسَ لَهُ جَزَاءٌ إِلَّا الجَنَّةُ»[١]

ژباړه: رسول الله صلی الله علیه وسلم فرمايي: قبول سوی حج بې له جنت څخه بل اجر او ثواب نه لري.

محترم مسلمانانو! د ا خو يو څو حديثونه دلته وليکل سول، ليکن د حج په فضيلتو کي مستقل کتابونه تحرير سوي دي، علاوه دا ده حاجي چي د کوره څخه وځي پر هرګام يې يوه نيکي ليکل کيږي او يوه ګناه يې رژيږي. [٢]

په بل روايت کې فرمايي: ترڅو چي کورته نه وي راغلی د حاجي هره دعاء قبليږي. [٣]

او نبي کريم صلی الله دعا کړې ده چي يا الله جل جلاله! بخښنه وکړې حاجي او هغه چا ته چي ورته دعاء کوي. [٤]

---

(١) بخاري: ج ١:،باب الحج.

(٢) رواه ابن حبان و عبدالرزاق، اخرجه البخاری: / ١٧٧٣و مسلم: ١٣٤٩/ والترمذی: ٩٣٣.

(٣) رواه ابن الجوزي.

(٤) رواه البيهقي.

## حج څه وخت فرض سو؟

علامه عيني رحمه الله د حج د فرضيت په سلسله کي د (۵) هجري څخه بيا تر (۱۰) هجري پوري متفرق اقوال ذکر کړي دي.

علامه شامي رحمه الله تعالى وايي: چې حج د هجرت په نهم کال فرض سو او نبي کريم صلى الله عليه وسلم حج د هجرت په لسم کال باندي اداء کړی.

## د حج فرضيت

حج په ټول عمر کي يو ځل اداء کول په اجماع سره فرض دی پر هر هغه چا چي د حج د فرضيت شرايط په کښي موجود سي، حج پر مسلمان باندي فرض عين دی چې حر وي، بالغ وي ، د عقل خاوند وي ، په بدن جوړ وي او په دې شرط چې لاره به يې په امن وي، د لارې پر خرڅ باندي به قدرت لري.بل شرط دا دی چي دومره مال به لري چي د هستوګني تر سرای او د اولاد تر نفقې او خرڅ به زيات وي؛ ترڅو دی بېرته خپل کورته راځي.

## د حج لغوي او شرعي معنی

حج په لغت کې د یو لوی شي قصد کولو ته ویل کیږي او په شرع کې د هغه مخصوص ځای زیارت کول په مخصوص وخت او خاص کار او طریقه سره.

## اخلاص

کله چې څوک د حج یا عمرې په سفر ځي دا واجب ده چې دغه حج یا عمره به خالص د الله تعالیٰ جل جلاله د رضاء لپاره کوي؛ ځکه الله جل جلاله یوازې هغه عمل قبلوي چې خالص د ده د رضاء لپاره سوی وي. هر ښه عمل به د الله تعالیٰ لپاره کوي.

رسول کریم صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: چې د اعمالو ثواب پر نیت موقوف دی او دا واجب دی چې د تلګ مخکې به د ټولو ګناهونو څخه په اخلاص توبه کاږي په داسې طریقه سره چې په زړه کې به پر تیرو ګناهونو پښېماني کوي، په خوله به د الله تعالیٰ څخه د تیرو ګناهونو بخښنه غواړي، په را روان وخت کې به د دغه ګناهونو د نه کولو ټینګ قصد و

کړي او دوه رکعته د توبې لمونځ به وکړي، د لمانځه وروسته به د دعاء لپاره لاسونه پورته کړي. (۱)

## د حج د پرېښودلوسزا

په کوم کال چې حج فرض سي په هغه کال يې اداء کول فرض دي. حج بې له عذره ځنډول ګناه لري. څوک چې د حج له فرضيت څخه منکر سي کافر دی او پرېښوونکی يې فاسق دی.که چا پر ځان باندي حج نذر کړ نو حج کول پر واجبيږي.

فرض او نذر حجونه دواړه په يو ډول اداء کيږي. رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: "

**مَنْ مَلَكَ زَاداً وَرَاحِلَةً تُبَلِّغُهُ إِلَى بَيْتِ اللهِ الْحَرَامِ وَلَمْ يَحُجَّ فَلَا عَلَيْهِ أَنْ يَمُوْتَ يَهُوْدِياًّ، أَوْ نَصْرَانِياًّ...** " . (۲)

---

(۱) مجامع المناسک : ص ۳ الی صـ: ۲۵.

(۲) رواه الترمذی: ج۱ رقم الحديث: ۸۱۲.

ژباړه: نبي کريم عليه السلام فرمايي: څوک چې دومره توښه او سپرلۍ ولري چې بيت الله ته په رسېدلای سي او حج و نه کړي نو د ده لپاره هيڅ فرق نه لري که پر يهوديت مړ کيږي او که پر نصرانيت.

## د حج اقسام او د کولو طريقه

حج درې قسمه دی:(۱)قران ،(۲)-تمتع،(۳)افراد. امام ابوحنيفه رحمة الله عليه وايي: حج قران تر حج تمتع افضل او بهتر دی. حج قران د هغه چا لپاره افضل دی چې تر ميقات د باندي اوسيږی او بل د حج تر اداء کېدو پوري پر خپل ځان باندي د احرام د ممنوعاتو څخه د حفاظت باور ولري څوک چې باور نه لري د هغه لپاره بيا تمتع تر قران افضل دی، دوهم تمتع بيا مفرد. (۱)

حج افراد معنٰی يوازي او جلا کار کول او د شريعت په اصطلاح کې حج افراد هغه حج ته ويل کيږي چې د سفر په وخت کي د احرام تړلو پر مهال يوازي د حج په نيت احرام وتړي او يوازي د حج افعال اداء کړي د عمرې

(۱) الهندية : ج۱ ص ۲۳۹ / شامي: ج ۲ص ۲۰۶/ الفقه الحنفي فی ثوبه الجديد ج ۱ص ۴۷۱ منحة الخالق علی البحر ج ۲ ص ۶۲۶.

نیت ورسره ونه کړي، دې حج کوونکي ته مفرد ویل کیږي. پر مفرد باندي دم (پسه د شکریې) نسته. (۱)

اول -حج قران هغه حج ته ویل کیږي چې له میقات څخه د عمرې او حج دواړو په نیت احرام پر یوه ځای باندې وتړي او دواړه په یوه احرام سره اداء کړي. حج قران معنٰی حج او عمره یوځای اداء کول. په شریعت کې د حج او عمرې د احرام یو ځای تړلو ته قران ویل کیږي. قارن بې له حلق (سرخریلو یا کوچنی کولو) عمره اداء کوي، بیا به د همدغې عمرې په احرام سره حج اداء کوي،دې حج کوونکي ته قارن ویل کیږي. (۲)

۲-حج تمتع هغه حج ته ویل کیږي چې اول له میقات څخه د حج په میاشتو کې یوازي د عمرې په نیت احرام وتړي، عمره اداء کړي.بیا په دغه کال کې د کور تر تلګ د مخه د حج په شپو کې د حج احرام وتړي او حج اداء کړي.

---

(۱) الموسوعة الفقهية : ج۱۷ ص ٤۲ / شرح النقاية ج ۲ص ۲۲۶.

(۲) القران وهو ان يهل بالعمرة والحج جميعاً فياتى بهما فى نسک واحد . الموسوعة الفقهية ج ۱۷ ص ٤۲ / غنية المناسک: ص ۲۰۱ / اتبيين: ج ۲ ص۳۳۲.

د تمتع لغوي معنٰی ده تر یو وخته پورې د یو شي څخه ګټه اخستل.

په اصطلاح کې دې ته ویل کیږي چې اول د میقات څخه د عمرې احرام و تړي، د عمرې د افعالو (طواف، سعی، صفا او مروه، حلق -سر خرییل یا کوچنی کول) څخه د فراغت وروسته احرام خلاصوي، بیا د ذوالحجې په اتم (۸) تاریخ باندې د مسجد الحرام څخه د حج احرام تړي، دې حج کوونکي ته متمتع ویل کیږي.پرمتمتع او قارن باندې دم (پسه د شکریې) واجب دی. (۱)

د مکې شریفې او داخل د میقات اوسېدونکي یوازې حج افراد اداء کولای سي، قران او تمتع نسي اداء کولای، که یې قران یا تمتع اداء کړل نو حج یې صحیح کیږي لیکن یودم باندې لازم دی. (۲)

---

(۱) الهندية: ج۱ ص ۲۳۸ / الخانية على هامش الهندية: ج۱ ص۳۰۴ / اللباب: ص ۲۹۸.

(۲) فتاوٰی رحیمیه: ج ۵ ص۲۲۱.

# د حج کولو نیت

د حج او عمرې لپاره په زړه سره نیت کول کفایت کوي، بله ضروري خبره داده چي زموږ اکثره ورونړو ته د حج نیت نه وي معلوم ، نو هېره دي نه وي چې نیت اصلاً د زړه نیت معتبر دی ، د هر قسم حج نیت چي دي په زړه کي کړی وي هغه ته اعتبار دی او په ژبه سره نیت کول ښه او افضل دی. نیت په خپله مورنۍ ژبه سره هم کولای سي خو په عربي ژبه سره افضل دی، نو د حج افراد نیت دي داسي وکړي:

اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُرِيْدُ الْحَجَّ فَيَسِّرْهُ لِيْ وَتَقَبَّلْهُ مِنِّيْ!

ژباړه: اې الله تعالیٰ! زه حج کول غواړم راته اسانه او را څخه قبول يې کړې.

د تمتع نیت دي دا ډول وکړي:

اَللّٰهُمَّ إِنِّيْ أُرِيْدُ الْعُمْرَةَ فَيَسِّرْهُ لِيْ وَتَقَبَّلْهُ مِنِّيْ!

# د اووم (۷)د ورځې د طواف قدوم بیان

چې د لوی اختر د میاشتې اوومه ورځ سي لومړی دي په نیت د سنتو غسل وکړي او که غسل تکلیف وو نو به اودس تازه کړي، بیا به په اوطاق کي کالي وکاږي، احرام به وتړي، وحرم شریف ته به د حج د احرام د نیت کولو لپاره راسي، دوه رکعته سنت لمونځ د احرام به وکړي، پس له لمانځه به نیت د فرضي حج د اسلام وکړي، بیا به تلبیه درې (۳) ځله ووایي، بیا به اوه (۷) شوطه طواف قدوم چې سنت دی وکړي. طواف قدوم هغه طواف ته ویل کیږي چې اول وار سړی کعبې شریفي ته ورسي او طواف کوي، دغه طواف ته طواف التحیه او طواف اللقاء هم ویل کیږي.طواف قدوم دهغه افاقي لپاره سنت دی چي حج افراد (یوازي حج) کوي او یا حج قران (حج او عمره دواړه په یوه نیت)کوي او د تمتع او عمرې والالپاره نه دی سنت. (۱)

که څوک طواف قدوم پرېږدي هیڅ شی نه پر لا زمیږي؛ البته سنت ځني پاته سوه او که طواف قدوم شروع کړي بیا یې تر پوره کېدو مخکي

---

(۱) وهو سنة للافاقي المفرد بالحج و القارن. لباب المناسک: ص۱۵۶/ الشامي: ج۲ ص۱۸۰ / غنية الناسک:ص۱۰۸ / الموسوعة الفقهية ج ۱۷ ص ۶۳.

پرېښودی اوس نو که يې د طواف قدوم ډېر شوطونه پرېيښي وه دم پر لازم دی او که يې لږ شوطونه پرېيښي و صدقه لازمه ده. (۱)

که طواف قدوم د طواف په نيت يا د نفلي طواف په نيت وکړي دغه طواف د طواف قدوم پر ځای دريږي . (۲)

## د اتم د ورځې او منی بيان

د اتم په ورځ د حاجيان لپاره سنت دا دی چې تر لمر ختلو وروسته تر زوال مخکي ووځي او تر لمر ختلو مخکي وتل د سنت خلاف دي او تر زوال وروسته وتل هم پروا نه لري؛ خو په دې شرط چې د ماپښين لمونځ په منٰی کې وکړي او د عرفات تر سهار پوري په منٰی کي پاته سي ، او د غه پنځه لمونځونه او د غه شپه په منٰی کي وکړي. (۳)

---

(۱) من ترک طواف التحية لم يلزمه شيء .الفتاوی الولوالجية: ج۱ ص ۲۹۰ / غنية الناسک: ص۲۷۶ / فتح القدير: ج۲ ص۴۶۴ / الشامي: ج۲ ص۱۸۲ / ارشاد الساري: ص۳۹۰.

(۲) الشامي:ج۲ ص۱۸۱ / لباب المناسک: ص ۱۶۱ / الهندية: ج۱ ص ۲۳۶.

(۳) الموسوعة الفقهية: ج ۳۹ ص۵۸ / غنية الناسک: ص ۱۴۶ / ارشاد الساري: ص ۲۰۸/ الشامي: ج : ۲ ص ۲۰۸.

د اتم په ورځ منی ته وتل سنت دي. (۱)

که معلمین حاجیان د اتم تر ورځې مخکې منٰی ته وباسي پروا نه لري. (۲)

د اتم تاریخ د شپې څخه حاجیان منٰی ته حرکت شروع کوي، نو باید پر وخت باندې د حج د احرام لپاره آمادګي ونیسي؛ ترڅو د معلمینو تر قیادت او نظم لاندې په منٰی کې خپل استوګنځایو ته ورسیږي او د معلم له خوا د پېژندګلوي کوم کارډ چې ورکول کیږي هغه دي د ځان سره وساتي؛ ترڅو د ورکېدو په حالت کې په منٰی او عرفات کې خپله خېمه او معلم پیدا کړي

که یو څوک د نهم شپه له منٰی څخه ماسپوا په بل ځای کې وکړي روا ده خوښه کار نه دی؛ ځکه د هر سنتونه يې پرېښودل چې هغه په منٰی کې پنځه لمونځونه او شپه کول وه.که د نهم (عرفات) په ورځ تر سپېدو مخکې یا د سهارد لمانځه مخکې د منٰی څخه عرفات ته روان سي د سنت خلاف کار دی خو شی نه پر لازمیږی

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج ۳۹ ص ۵۸ / شرح الباب: ص۲۰۸.
(۲) غنية الناسک: ص ۱۴۶ / اعلاء السنن: ج۷ ص۳۰۱۷ / مسائل رفعت قاسمي: ج ۵ ص۲۱۲.
اللباب: ص۲۰۸ وص ۲۰۹.

## د نهم د ورځې وظيفه او د عرفات مسائل

د نهم په ورځ د سهار د لمانځه وروسته دي عرفات ته حرکت وکړي، که څه هم د معلمينو موټران د شپې له خوا هم حاجيان صاحبان د منٰی څخه عرفات ته انتقالوي؛ ليکن افضله دا ده چې د سهار لمونځ په منٰی کي اداء کړي، سنت دا دی چې د نهم د ورځي تر لمر را ختلو پوري په منٰی کي پاته سي او د غه پنځه (۵) لمونځونه د اتم (۸) د ماپښين څخه د عرفات تر سهار پوري په منٰی کي کول سنت دي. .(۱)

## د عرفات درېدل په حج کي فرض دي

رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: (اَلحَجّ عرفة ) يعني حج د عرفې د ورځې څخه عبارت دی، په دې ورځ پر عرفات درېدل د حج ستر رکن دی که په خپل وخت کي د عرفې درېده درڅخه پاته سوه ټوله خواري مو ولاړه، پر کال به بيا حج ته ځئ. په عرفات کي د وقوف وخت تر زوال وروسته شروع کيږي نو د زوال څخه مخکي دي د ډوډی او ضروورياتو.

(۱) الموسوعة الفقهية: ج۳۹ ص ۵۸ / غنية الناسک: ص۱۴۶ / اعلاء السنن: ج ۷ ص۳۰۷۱.

څخه ځان فارغه کړي. (۱)

## د عرفات د درېدو د صحت شرطونه دوه دي

۱-درېدل به د عرفات په ځمکه کي وي.

۲-د عرفات په وخت کي به وي.

د عرفات د درېدو لپاره غسل کول سنت دي. (۲)

پرعرفات باندي درېدل د نهم د ورځي د زوال وروسته بيا د اختر د ورځي تر دوهمو سپېدو يعني صبح صادق پوري په عرفات کي وخت تېرول که څه هم ډېر لږ وي، لکه: يوه دقيقه او يا تر دغه کم يوه لحظه تېرول فرض دي او دا يو خاص ځای او خاص وخت دی، يوه لحظه هم مه ضائع کوئ او

---

(۱) و فرائض الحج ثلاثة اشياء: الاحرام، و الوقوف بعرفة، و طواف الزيارة.

الحاوي القدسي: ج۱ ص۳۳۸ / الشامي: ج۲ ص۱۶۰ / البحر: ج۲ ص۵۹۴

(۲) و اما سنته فالاغتسال للوقوف البحر: ج۲ ص۵۹۴ / غنية الناسک: ص ۱۶۰ / الموسوعة الفقهية: ج ۴۵ ص۳۱۷/ الهندية: ج۱ ص ۲۲۹.

ترماښامه پورې په تلبیه ویلو،توبه، استغفار غوښتلو،.

په ژړا، زاریو او دعاء وخت تېر کړئ.

او عرفات په ولاړې کول مستحب دی، په ناسته هم روا دی. (۱)

که یو څوک د اختر په شپه کې عرفات ته ولاړ سي د سنت خلاف کار دی

خوفرض په اداء کیږي او شی نه پر لا زمیږي. (۲)

که یو څوک په خپله خوښه د عرفات په وخت کې عرفات ته په ناپاکي کي ورسیږي او یا په دې نه وي خبر چې دا عرفات دی یا بیده وي، یا لیونی وي، یا بیهوښه وي او یا په عرفات کي تېر سي په ټولو صورتو کي د عرفات فرض په اداء کیږي او په عرفات باندي د دریدو لپاره له ماشتني عادت(څلوېښتي)او جنابت څخه پاکي نه ده شرط. (۳)

---

(۱) البدائع: ج۲ص۳۰۳ / الهندیة ج۱ ص۲۲۹ / اعلاء السنن: ج۷ ص ۳۰۷۵ / غنیة الناسک: ص۱۵۹ / اللباب: ص۲۲۶.

(۲) شرح اللباب:ص۲۲۷ / الشامي: ج۲ ص۱۶۱ / غنیة الناسک: ص۱۵۹.

(۳) غنیة الناسک: ص ۱۵۹ / اللباب: ص۲۲۶.

رسول الله صلی الله علیه وسلم د عرفات په ورځ د عرفات د غونډۍ لاندې د لارې راسته طرف ته چې کومې غټې تورې ډبرې دي- چې اوس په مسجد الصخرات سره مشهور دی-هلته درېدلی دی نو هلته درېدل سنت دي او که بل چاته ضرر رسېدی بیا به دغه ځای ته نه ورځي.

د عرفات غونډۍ ته ور ختل دغه عمل د سنت خلاف دی، بعضې کسان جبل رحمت ته ختل ثواب بولي سره له دې چې دا حقیقت نه لري نو د غونډۍ د ختلو څخه ځان ساتل په کار دي. (۱)

رسول الله صلی الله علیه وسلم په حج کې د عرفات په ورځ روژه نه ده نیولې. (۲)

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج۴۵ ص۳۲۶ / البحر: ج۲ص ۵۹۵ / الهندية: ج۱ ص۲۲۹ / غنية الناسک: ص۱۶۹.

(۲) منحة الخالق: ج۲ ص ۵۹۵ / شرح اللباب: ص۲۲۸ / الفقه الاسلامي و آدلته: ج۳ ص۲۲۴۰.

## مسجد نمره( د عرفات مسجد )ته د تللو حکم

ځنې حنفي مسلکه حاجیان  مسجدنمره ته په عرفات کي د حاضرېدلو ډېر زیات اهتمام کوي؛ ترڅو د مسجد نمره فضیلت حاصل کړي، د امام په اقتداء کي د ماپښین او مازدیګر لمونځونه یو ځای وکړي، نو عرض دا دی چي اول خو په حنفي مسلک کي د ماپښین او مازدیګر لمونځونه سره یو ځای کول د حاجي لپاره په عرفات کي واجب نه دي بلکي سنت دي، دوهم دا چې دا دوه لمونځونه سره یوځای کول څو شرطونه لري:

۱-تر دغه لمونځو مخکي به یې د حج احرام تړلی وي.

۲-دواړه لمونځونه به په جماعت سره کوي.

۳-د وخت امام او یا د هغه نائب به دغه لمونځونه ورکوي.

۴-د ماپښین لمونځ به د مازدیګر د لمانځه د مخه کوي.

۵-تر زوال وروسته د مازدیګر د وخت تر داخلېدو مخکي به وي .

۶-په عرفات کي یا عرفات ته نژدې به وي؛ که په دغه شرطو نو کي یو شرط نه وي پرځای هغه نور پنځه ټول پر ځای وي نو بیا به د ماپښین

لمونځ د ماپښين په وخت کې په آذان او اقامت سره په جماعت اداء کړي دمازديګر لمونځ به د مازديګر په وخت کې په اذان او اقامت سره په جماعت اداء کړي. او د مازديګر لمونځ او ماپښين لمونځ چې په عرفات کې پر يو ځای باندې کيږي په دغه يو ځايوالي کې مقيم او مسافر فرق نه لري.(۱)

په عرفات کې مخامخ قبلې ته درېدل مستحب دي.

او په عرفات کې تر لمر لوېدو پورې پاتېدل واجب دي.(۲)

په عرفات کې سنت دا دي چې ځان به د غفلت او کوتاهي څخه ساتي ځکه دا ورځ بيا هر وخت نه پيدا کيږي، ډېرې ښې ښې دعاوې به کوي تلبيه به وايې، استغفار به وايې، پر رسول الله صلى الله عليه وسلم به درود وايې،ذکر به ډېر، ډېر کوي، په اخلاص سره به د خپلو ټولو ګناهونو

---

(۱) الموسوعة الفقهية: ج۴۵ ص۳۲۴ / غنية الناسک: ص۱۵۱ / جواهر الفقه: ج۴ ص۱۳۳ / شرح اللباب:۲۳۱.

(۲) فتاوىٰ دارالعلوم ديوبند: ج۶ ص۵۴۷ / الشامي ج۲ ص۱۶۱، وينبغي ان يقف مستقبل القبلة : الهداية مع الفتح: ج۲ ص۳۷۳ / اللباب: ص۲۲۸ / غنية الناسک: ص۱۶۱و ص ۱۵۹.

ځخه توبه کاږي، بخښنه به غواړي، ژړا به کوي او د خدای جل جلاله د رضا لپاره به خپل غږ تلیفون بند کړي. قصدي او غیر قصدي ګناهونه در بخښل کیږي او هرچاته چې دي دعاء کوله هغه ته هم مغفرت کیږي(چې زه حقیر د دغه مناسک ترتیب کوونکی سید نور الله آغا مدني دي هېر نسم) قبول وخت په لاس درغلی دی چې در څخه خطا نسي او خپل دا قیمتي وخت په ښه ارام او سکون سره د الله جل جلاله په یاد او ذکر کي تېر کړه او دغه دعاء کوه چې حج دي قبول سي، د ټولو ګناهونو ځخه به خلاص سې او دا به وایې: یا الله جل جلاله! زما ټولي دعاګاني زما له طرفه ځخه قبولي کړه. آمین ثم آمین !

د عرفات ټوله ځمکه د هر معلم خېمې او سړکان د دعاء د قبول ځای دی غیر له شېلو ځخه.(۱)

---

(۱) و من السنة ان یکثر من الدعاء ، والتکبیر، و التهلیل، والتلبیة ، والاستغفار، وقراءة القران، والصلوة علی النبي صلی الله علیه وسلم الخ.

البحر: ج۲ ص۵۹۵ / الموسوعة الفقهیة: ج ۴۵ ص۳۲۷.

که یو څوک تر لمر لوېدو مخکې له عرفات څخه د عذر په وجه یا بې له عذره ووځي یو دم پر لازم دي ، معذور او غیر معذور فرق نه لري؛ خو که تر لمر لوېدو مخکې بېرته را وګرځي او بیا تر لمر لوېدو وروسته ووځي یواځې په دغه حالت کې له دغه لا زم دم څخه خلاصیږي او که ترلمر لوېدو وروسته عرفات ته را وګرځي د هغه دم څخه نه خلاصیږي. که یو څوک تر لمر لوېدو وروسته په عرفات کې ډېر وځنډېږي که د عذر په وجه و ځنډېږي پروا نه کوي او که بې له عذره وي نو بیا مکروه کار دی.(۱)

(۱) فتح القدیر:ج۲ ص۳۷۶ / الشامي: ج ۲ ص۱۹۱ / اللباب : ص۲۳۲/ اللباب مع الشرح: ص۲۳۵.

## د مزدلفې شريفې د وقوف(درېدلو) بيان

د عرفات څخه د لمر لوېدو وروسته حاجيان صاحبان مزدلفې شريفې ته روانيږي چې کله مزدلفې شريفې ته په خير ورسيږي، د ماښام او ماخوستن لمونځونه په مزدلفه شريفه کي کول واجب دی، که يې په جماعت سره کوي که يې يوازې کوي؛ ځکه چې په جماعت سره اداء کول يې شرط نه دی، په جماعت سره يې کول سنت مؤکد دي.

په مزدلفه شريفه کي د ماښام او ماخوستن د لمونځونو د يو ځای کولو پنځه شرطونه دي:

۱-د حج احرام به يې تړلی وي.

۲-پر عرفات به مخکي درېدلی وي.

۳-د اختر شپه به وي.

۴-په مزدلفه شريفه کي به وي.

۵-د ماخوستن وخت به وي.

که په دغه پنځو شرطونو کې یو پاته سي نو بیا د ماښام او ماخوستن د لمونځونو جمع کول روا نه دي.(۱)

په مزدلفه شریفه کي د ماښام او ماخستن دواړه لمونځونه دي یو ځای د ماخستن په وخت کې اداء کړي،د دواړو لپاره دي یو آذان او یو اقامت وکړي اول به د ماښام درې رکعته فرض لمونځ په نیت د حاضر وخت د ماخستن وکړي، قضاء نه بلل کیږي؛ ځکه چي دغه تاخیر د شریعت په امر سره دی، تر سلام ګرځولو ورسته دي د تشریق تکبیرونه ووایي، تلبیه دي ووایي، د لمانځه د ولاړېدو په حال کي ، بیا دي بې له اقامت څخه فوراً د ماخستن فرض په جماعت سره اداء کړي سلام دي و ګرځوي، د تشریق تکبیرونه دي ووایي، تلبیه دي ووایي که مسافروو د ماخستن دوه رکعته فرض به وکړي، که مقیم وو نو څلور رکعته فرض به وکړي، تردې وروسته دي د ماښام دوه رکعته سنت بیا د ماخستن دوه رکعته سنت او وروسته دي درې رکعته وتر اداء کړي،خو د دغه دوو فرضونو تر مینځ دي

---

(۱) والجماعة سنة مؤكدة فی هذا الجمع و ليست بشرط. غنية الناسک: ص۱۶۳وص ۱۶۵ / الشامي: ج۲ ص۱۹۱ / اللباب: ص۲۳۷ وص ۲۴۰/ جواهر الفقه: ج۴ ص۱۳۸.

و للجمع بمزدلفة شروط هی: الاحرام بالحج الخ.الموسوعة الفقهية: ج۳۷ ص۹۶.

سنت او نفل نه کوي دا دوه فرضونه يو ځاى کول واجب دي.(۱)

د مزدلفې شريفې شپه ډېره د برکت او فضيلت شپه ده، بعضو علماء کرامو د ليلة القدر تر شپې هم افضله بللې ده، نو کوښښ وکړئ چې ښه په عبادت سره يې تېره کړئ. په مزدلفه شريفه کې د اختر شپه تېرول سنت مؤكد ده، که يو څوک دغه شپه بل ځاى وکړي د سنت خلاف عمل دى خو شى نه پر لازمېږي.(۲)

---

(۱) البدائع: ج۲ ص۳۵۵ / الهداية مع الفتح: ج۲ ص۳۷۷ / البحر: ج۲ ص۵۹۷ / غنية الناسک: ص۱۶۳ / الشامي: ج۲ ص۱۸۸وص ۱۹۲ / منحة الخالق على البحر:ج۲ ص۵۹۰.

و ينوى المغرب اداء لاقضاء.اللباب: ص۲۳۷ / النهر الفائق: ج۲ص۸۵ .

(۲) غنية الناسک: ص۱۶۵/ الشامي: ج۲ ص۱۹۳ / فتح القدير: ج۲ ص۱۸۱ / الموسوعة الفقهية: ج۳۷ ص۹۶.

د مزدلفې شریفې درېدل واجب دي، د درېدلو اول وخت يې دادی: له صبح صادق څخه چې (دوهمې سپېدې ) را وخيژي بيا د اختر د ورځې تر لمر ختلو پورې دی، نو که يو څوک تر سپېدو مخکې يا تر لمر را ختلو وروسته ودرېږي په دغه درېدولو واجب نه اداء کيږي او د مزدلفې شريفې واجب وقوف په لږ درېدو سره هم اداء کيږي، که څه هم تر دقيقه لږ وخت وي، په مزدلفه کي د سپېدو وروسته بيا د لمر راختلو لږ مخکې دغه ټول وخت سنت دي.(۱)

(۱) والوقوف بمزدلفة واجب مجمع الانهر: ج۱ ص۴۱۱ / الزيلعي: ج۲ ص۳۰۰

التاتارخانية: ج۲ص۱۶۵ / الشامي:ج۲ص۱۹۳/ غنية الناسک:ص۱۶۶/ اللباب ص۲۴۲ الموسوعة الفقهية: ج۳۷ ص۱۰۱.

په مزدلفه شریفه کې د وادي(شپلې )محسر څخه ماسپوا د مزدلفې شریفې په هر ځای کې چې ودرېږي واجب په اداء کېږي خو افضل دا دي چې د مشعر الحرام پر غونډۍ باندې ودرېږي، که اسانه وي او که نه وي بیا تر غونډۍ لا ندې او یا غونډۍ ته نژدې به ودرېږي. که یو څوک بېده یا لېونی یا نشه یا بېهوښه وي نور خلک يې مزدلفې شریفې ته یوسي په دغه باندې د ده په مزدلفه شریفه کې د درېدو واجب اداء کېږي او که یو څوک د اختر دورځې د سپېدو وروسته او تر لمر را ختلو مخکې په موټر کې په مزدلفه شریفه کې تېر سي او را کښته نه سي د مزدلفې شریفې واجب په اداء کېږي او شی نه پر لا زمېږي.(۱)

که مریض، ضعیف او یا ښځه دمزدلفې شریفې درېدل پرېږدي شی نه پرې لا زمېږي او که له دغو درو څخه ماسپوا بې له عذره څخه يې بل څوک د مزدلفې شریفې درېدل پرېږدي او یا لږ وخت هم پاته نسي او یا په شپه کې تر صبح صادق مخکې له مزدلفې شریفې څخه ولاړ سی؛ دم پر لاز دي اوکه د ښځې محرم او یا د ضعیف او مریض ملګری د دوی په وجه د مزدلفې شریفې درېدل پرېږدي دم پر لازم دي همدا راز که جوړ سړی

(۱) الشامي: ج۲ ص۱۹۱وص ۱۹۳/ فتح القدير: ج۲ ص ۳۸۱ / الزيلعي: ج۲ ص۳۰۰ / اللباب:۲۴۳ زبدة المناسک: ص ۱۸۰/ غنية الناسک: ص۱۶۵وص ۱۶۶/ المبسوط للسرخسي: ج ۴ ص۷۲.

د رش(ګڼه ګوڼې) له کبله د مزدلفې شريفي درېدل پرېږدي دم پر واجبيږي.(١)

که څوک د مزدلفې شريفي د درېدو په وخت کي په خيمه کي وي او خيمه يې په مزدلفه شريفه کي وي، لکه: په دا موجوده وخت کي چي معلمانو د منٰی يو څه خيمې په مزدلفه کي درولي وي د شپې سنت او د مزدلفې شريفي د درېدو واجب په اداء کيږي؛ خو که دغه خيمه په محسر شېله کي ولاړه وي بيا روا نه دی.(٢)

که يو څوک عرفات ته د شپې په اخير کي ورسېدی او وروسته د خپل کوښښ کولو سره تر لمر را ختلو مخکي و مزدلفې شريفي ته نه ورسېدل او يا څو ک مزدلفې شريفي ته روان وي خو د وخت د تنګوالي په وجه پردې وبيريږي چې تر سپېدو مخکي مزدلفې شريفي ته نسم رسېدلا ی نو

(١) اللباب: ص٢۴٢ / الهداية مع الفتح: ج٢ ص٣٨٠ / معلم الحجاج: ص١٧٣ الشامي:ج٢ص١٩٣ / غنية الناسک:ص١۶۶ / البحر: ج٢ ص۶٠٠.

(٢) الموسوعة الفقهية: ج٣٧ ص ٩۵ / شرح النقاية: ج٢ ص ٢۵۶ / غنية الناسک: ص ١۶٧

فتح القدير: ج٢ ص٣٨١.

دغه سړی پر لار باندي د ماښام او ماخستن لمونځونه کولای سي او هيڅ شی نسته؛ نه دم او نه صدقه او حجاج چي د حج په مناسکو مشغول وي د اختر لمونځ نسته باندي.(۱)

## د مشعر الحرام غر

مشعر الحرام چې د مزدلفې شريفي و مسجد ته پر چپه لاس نژدې پر (۱۵۰) متره يو کوچنی غر دی ښنبه يې دا ده چي د غره پر يوه حصه باندي يې بلډنګ (عماره)ده چي دې مبارک غره ته ور ختل هم سنت دي او د هر حاجي صاحب به دا عقيده وي چي زما ټول حوائج او دعاګاني الله تعالٰی جل جلاله په همدې ځای کي را پوره کوي؛ ځکه د رسول الله صلی الله عليه وسلم ټولې غوښتني د امت په باره کې په همدې ځای(مشعر الحرام) کي الله جل جلا له قبولې کړي دي، الله تعالٰی دي زموږ د ټولو حاجيانو ټول حاجتونه او دعاګاني په همدې مشعر الحرام کي راپوره کړي آمين ثم آمين!

(۱) البدائع : ج۲ ص۳۵۶ / الهندية: ج۱ ص۲۳۰ / الزيلعي: ج ۲ ص۲۹۸/ غنية الناسک: ص۱۶۶/ ارشاد الساري: ص ۲۴۱ / زبدة المناسک: ص۱۸۱ / الشامي: ج۲ ص۷۲۴ / المبسوط للسرخسي: ج۱۲ ص۲۴ / شرح اللباب: ص۲۶۰.

## د لسم د ورځې وظیفه او بیان

د لسم په ورځ چې د اختر اوله ورځ ده د مزدلفې شریفې څخه و منٰی شریفې ته چې تاسو را ورسیږي په دغه ورځ د اعمالو تر مینځ ترتیب واجب دی، که کوم عمل مخ یا شاته سو نو بیا دم پر لازمیږي، چې ترتیب یې په لاندې ډول دی:

اول- چې کله حج کوونکی منٰی ته ورسیږي نو لومړی به جمرة العقبة (غټ شیطان) په اوو(۷) ډبرو سره وولي، د شیطانانو ویشتل واجب دي، د اختر د ورځي سره په څلور ورځو کي واجب دي؛ خو په څلورمه ورځ کي هغه وخت واجب کیږي چې د دغه څلورمي ورځي سپېدې په منٰی کي پر را وخیژي او که تر دغه مخکې د منٰی څخه ولاړ شي بیا د دغه څلورمي ورځي شیطانان ویشتل نه دي واجب، او که د څلورمي ورځي تر سپېدو وروسته ولاړسي دم پر لازم دی.

د ډبرو ویشتلو طریقه دا ده: چې د جمرة العقبة څخه به لږ تر لږه پنځه ګزه لیري ودریږي، بیا به د راسته لاس په بټه او د شهادت په ګوتو سره به یوه ډبره ونیسي او وبه یې ولي، په نورو طریقو سره هم ویشتل روا دي، پر هره ډبره به داسي وایاست: د الله تعالٰی د رضا او د شیطان د ترټلو لپاره

بسم الله، الله اکبر او که د دغه کلماتو پر ځای نور کلمې ووايي هم پروا نه کوي، که هيڅ شی نه وايي او پټه خوله ولاړ وي دغه هم روا دي؛ خو د سنت خلاف او مکروه کار دی.د اولي شګي (ډبري) په ويشتلو سره دي تلبيه قطعه (بنده) کړي، بيا دي يې نه وايي، د جمرة العقبة د ستني په بيخ کي به يې ور وغورځوي، که چا په دومره زور سره ګلی وويشتی چي تر ويشتلو وروسته ډبره ببرته له هغه ځايه ولاړه د جمرې له احاطې څخه ووته نو دا ويشتل يې صحيح نه سول، دويم وار به يې بيا ولي، که نه اوس خو يې الحمد لله ډېر سم کړي چي ډبره اخور ته ورسيږي نو صحت لري.(۱)

دوهم- بيا به پسه د شکريه حلالوي.

دريم- سر به خريې او يا به يې کوچنی کوي. د حج افراد کوونکي لپاره د شکريه پسه حلا لول نسته ، اول به غټ شيطان ولي، بيا به سر خريي يا کوچنی کوي.

---

(۱) اتفق الفقهاء على ان رمى الجمار واجب. الموسوعة الفقهية: ج ۲۳ ص۱۵۰ / البدائع : ج۲ ص۳۲۲ / الشامي: ج۲ ص۱۶۱ / غنية الناسک: ص ۱۷۱ / اللباب: ص۲۴۷وص ۲۷۱ / مجامع المناسک: ص۲۶۳ / زبدة المناسک: ص ۱۸۸.

د شیطانانو لپاره په مزدلفه شریفه کي د ډبرو ټولول یعني جمع کول ښه کار دی چي جمله (۴۹) ډبري کیږي او هر شیطان به په اوو(۷) ډبرو باندي ولي او مستحب دا ده چې د اختر د ورځي (۷) ډبري د غټ شیطان لپاره د مزدلفې شریفي څخه را واخلي او د نورو ورځو ډبري چي د هرځای څخه را واخلي روا دي، خو یو د مسجد شریف ډبري، مرداري ډبري او هغه ډبري چي شیطان په ویشتل سوی وي په دغه درې قسمه ډبرو باندي ویشتل مکروه دي. د هري ډبري اندازه به د غټ نخود یا د غټي لوبیا یا د خرما د مندکي په اندازه وي او که تر دغه ډبري غټي وي روا دي خو مکروه دي او که لږ کوچنۍ وي روا دي خو د مستحب خلاف دي.(۱)

---

(۱) الزیلعي: ج۲ ص۳۰۲ / البحر: ج۲ ص۶۰۱ / الشامي: ج۲ ص۱۹۴ / الموسوعة الفقهیة: ج ۱۵ ص۲۷۸ / غنیة الناسک: ص ۱۶۸.

# په شیطانانو کي د وکالت بیان

په شیطانانوکي وکالت په خاص ډول بیا په جمرة العقبة (غټ شیطان ) کي وکالت جائز نه دی، که نر وي اوکه ښځه؛ جوړ وي او که ناجوړه او که ضعیف وي هر یو به یې پخپله ولي؛ مګر د هغه چا لپاره وکالت جائز دی چې داسي مریض وي چې د فرضي لمونځ په ولاړي باندي د اداء کولو قدرت نه لري په ناسته یې کوي یا دومره کمزوری وي چي تر جمراتو (شیطانانو ) پوري پرسوارلي باندي هم په تکلیف وي، یا یې د ناروغي د لا زیاتوالي خطره وي، یا دومره ناروغ وي چې تر جمراتو پوري پر خپلو پښو نسي تللای او تر جمراتو پوري د سوارلي شی هم نه پیدا کیږي داسې کسان شرعاً معذور دي، خو چې بې له شرعي عذره خپل واجب پریږدي یو خو ګناهګاره دی بل یې حج ناقص سو او په شرعي عذر کي دي یو بل ځوک د ځان لپاره وکیل (نائب) وټاکي، هغه دي د ده لپاره شیطانان وولي. د ښځو لپاره یا د ضعیفو او ناجوړو لپاره چې ازدحام (ګڼه ګوڼه) وي ماښام مهال د شیطانانو ویشتل افضل دي هیڅ کراهت نه لري.د شیطانانو ویشتل په راسته لاس سنت دي، د اختر په ورځ به یوازي جمرة العقبة یعني غټ شیطان ولي، مخامخ به په داسي طریقه سره ورته دریږي

چې چپه اوږه به مو د مکې شريفې خوا ته وي او راسته اوږه به مو د منٰی وخواته وي، چې د کعبې شريفې د طرفه څخه اول ځلی دی او د منٰی د طرفه څخه دريم ځلی دی او د خپلو ډبرو د لوېدو ځای به ويني اوکه يې د بل طرفه څخه وولي هم روا دي؛ خو د سنت خلاف کار دی.(۱)

که يو څوک جمرة العقبة يعني غټ شيطان د اختر د ورځې تر سپېدو مخکې وولي نه صحيح کيږي دوهم وار به يې په خپل وخت کې بيا ولي.(۲)

---

(۱) غنية الناسک: ص۱۷۱ / فتح القدير: ج۲ ص۳۸۳.

يجب فی يوم النحر رمی جمرة العقبة وحدها فقط.

الموسوعة الفقهية: ج۲۳ ص۱۵۵ / الشامي: ج۲ ص۱۹۴/ مجامع المناسک: ص۲۶۲ و ص۲۶۴ الهندية: ج۱ ص۲۳۳ / البدائع: ج۲ ص ۳۶۰ .

(۲) و لو رمی قبل طلوع فجر لم يصح اتفاقاً.

الشامي: ج۲ ص۱۹۶ / الهندية: ج۱ ص۲۳۳ / البحر: ج۲ ص۶۰۴.

اونور دوه شیطانان له هر طرفه روا دي خو افضل یې دا ده چي مخ یې پر قبله وي او که یو څوک د اختر په روځ دوهم او دریم شیطان وولي مکروه کار دی.(۱)

د اختر په دوهمه او دریمه ورځ به درې سره شیطانان ولي او هر یو به جلا جلا په اوو(۷) ډبرو سره وولي او سنت دا دی چي د زوال وروسته تر لمر لوېدلو پوري یې وولي وروسته بیا د دغه بلي ورځي تر سپېدو پوري روا دي؛ البته مکروه دي، د ښځو او ضعیفو خلکو لپاره نه دي مکروه؛ ولي د ځان ساتنه فرض ده او تر وزوال مخکي ویشتل نه صحیح کیږي.(۲)

که یو څوک په یوه وار باندي شیطان په اوو(۷) ډبرو سره وولي دغه اوه ډبرې پر یوه ډبره حساب دي، د شپږو نورو ډبرو ویشتل پر لازم دي.(۳)

د اختر په دوهمه، دریمه او څلورمه ورځ ټول شیطانان په ترتیب سره

---

(۱) غنیة الناسک: ص۱۷۱ / منحة الخالق علی البحر: ج۲ ص۶۰۲

(۲) و فی بقیة الایام یرمی الجمار کلها. العنایة علی هامش الفتح: ج۲ ص۳۸۲ / مجامع المناسک: ص۲۸۴ / اللباب: ص۲۶۲.

(۳) الموسوعةالفقهیة: ج۲۳ ص۱۵۳ / غنیة الناسک: ص۱۸۷ / المبسوط للسرخسي: ج٤ ص ۷۵.

ویشتل کیږي، سنت دا دی چې اول وار به کوچنی شیطان وولي، بیا دوهم (میانه) بیا دریم (غټ) شیطان وولي، که یې بې له ترتیبه وولي یعني اول وار غټ شیطان وولي، بیا دوهم (میانه) بیا اول (کوچنی) شیطان وولي نو د سنت خلاف عمل دی؛ خو ښه کار دا دی چې له سره درې سره شیطانان پر ترتیب وولي، په راتلونکو پاته ورځوکي د ټولو شیطانانو د ویشتلو همدغه لیکل سوي طریقه ده. غفلت مه کوئ، په معمولي عذر سره حاجیان صاحبان د نورو خلګو په واسطه رمي کوي خصوصاً ښځي چې اکثر یې د هغوی محرم نارینه د هغوی له طرفه څخه بې له کوم شرعي عذره رمي یعني دشیطان ویشتل کوي دا بالکل جواز نه لري په داسي رمي کولو سره دم لازمیږي.(۱)

د جمرة العقبة د ویشتلو وروسته به د دعاء لپاره په یوه ورځ کي هم دجمرة العقبة (غټ شیطان) وروسته نه دریږي.(۲)

---

(۱) البحر: ج۲ ص۶۱۰ و ما ذکرنا من الترتیب فی الجمار الثلاث سنة عند الا کثر هو المختار.

غنیة الناسک: ص۱۸۵ / الشامي: ج۲ ص۲۰۰ / فتح القدیر: ج۲ ص۳۹۱ / الهندیة: ج ۱ ص ۲۳۴ التاتارخانیة: ج ۲ص۱۷۰.

(۲) ولایقف عندها لان النبی علیه السلام لم یقف عند جمرة العقبة. مجمع الا نهر: ج۱ ص ۴۱۳ البدائع: ج۲ ص۳۶۱ / اعلاء السنن: ج۷ ص۳۱۴۵.

د اول (کوچني) شیطان او دوهم (میانه) شیطان د ویشتلو وروسته به د دعاء لپاره دریږي؛ خو معلومه دعاء لازمه نه ده، هره دعاء چې یې خوښه وي هغه دي وکړي اوسنت دا دی چې مخامخ قبلې ته به ودریږي او لاسونه به د دعاء په شان پورته کړي، نو د الله تعالیٰ جل جلاله حمد به ووایي، الله اکبر به ووایي، لااله الاالله به ووایي، پر نبي کریم صلی الله علیه وسلم به درودشریف ووایي او په عاجزي سره به دعاء وکړي، د ځان لپاره، د خپل مور او پلار او نورو قریبانو، دوستانو او ټولو مسلمانانو لپاره؛ ځکه دغه د دعاء د قبلېدو ځای دی.(۱)

دشیطانانو د ویشتلو ډبرې پرېولل مستحب دي، که دغه ډبرې یقیني مردارې وي نو به دغه ډبرو باندې ویشتل روا دي؛ خو مکروه دي او که یقیني مردارې نه وي بیا مکروه نه دي.(۲)

---

(۱) المبسوط للشیباني: ج۲ ص۳۵۹ / الهندیة: ج۱ ص۲۳۲ / شرح النقایة: ج۲ ص۲۶۶ / فتح القدیر: ج۲ ص۳۹۲ / المبسوط للسرخسي ج٤ ص۷۸.

و الوقوف عند الاولین سنة فی الایام کلها . الشامي: ج۲ص۲۰۰.

(۲) فتح القدیر: ج۲ ص۳۸۵ / الشبلي علی الزیلعي: ج۲ ص۳۰۲.

که يو څوک تر اول او دوهم شيطان وروسته د دعاء لپاره نه ودرېږي د سنت خلاف کار دی ؛ خو شی نه لا زمیږي.(۱)

په اوس وخت کي چي پر شيطانانو لوړ منزلونه جوړ سوي دي په هغه کي د شيطانانو ويشتل صحيح دي، لوړ او کښته فرق نه لري، د شيطانانو د ويشتلو لپاره اودس کول او درېدل لا زم نه دي افضل دي، نو که يې په بې اودسي يا په ناسته وولي روا دي.(۲)

(۱) والوقوف عند الاولين بعد الرمى سنة فى الايام كلها، وان لم يقف جاز، ولا شيء عليه. مجامع المناسک: ص۲۹۰ / المبسوط للشيبانی: ج۲ ص۳۵۷.

(۲) غنية المناسک: ص۱۸۶ / اللباب: ص۲۷۶.

# د شکريې (قرباني) مسائل

د اختر په روځ دوهمه وظيفه د شکريه (پسه) حلا لېده دي، افضل او ښه کار دا دی چي په خپله يې حلال کړئ -که يې حلالول زده وي- او يا خو يو قابل اعتماد سړی چي پر هغه باندي مو يقين وي وکالت ورته وسپارئ، د ښځي لپاره مستحب دا دي چي په وکيل يې حلال کړي.او وکيل چي د يو سړي د اختری يا شکريه حلالوي نو د حلالولو په وخت کي د هغه سړي نوم په خوله باندي يادول نه غواړي، د زړه نيت صحيح دی، له بلي داسي لاري چي د خلکو څخه روپۍ او و کالتونه اخلي، شکريه ورحلالوي او وخت يې مجهول وي د داسي ادارې له لاري څخه د شکريه کولو څخه ډډه وکړئ، ښه خبره دا ده چي په خپله يا د يو معتمد وکيل په لاس يې حلاله کړئ.(۱)

---

(۱) و الا فضل ان يذبح بنفسه ان کان يحسن ذلک و الا يستحب له الحضور عند الذبح. اللباب :ص۲۴۹ / غنية الناسک: ص۳۵۸وص ۳۵۹.

و السنة للمرآة ان توکل عنها و ليس على الوکيل ان يقول عند الذبح عمن؛ لان النية تجزئ. الفقه الاسلامي و ادلته: ج۴ ص۲۷۳۶وص ۲۷۳۷.

شکريه تر جمرة العقبة(غټ شيطان ) ويشتلو وروسته که مو حج قران او تمتع وي نو د شکريه حلالول واجب دي او که مو حج افراد کړی وي نو بيا د شکريې حلالول مستحب دي.(۱)

په شکريه کي هر هغه حيوان حلالول جائز دي چي د لوی اختر په اختريانو کي يې حلالول جائز وي، نو د حج د شکريه حيوان ښه ګورئ، داسي حيوان اخيستل په کار دي چي صحيح او سالم وي عيب و نه لري، عمر يې پوره وي؛ ترڅو شکره صحيح اداء سي، دغه ډول په اوښ، غوايي او ګامېښه کي د اوو(۷) کسانو او يا تر دغه لږ نفرو شرکت صحيح دی او د ډېرو نفرو شرکت نه صحيح کيږي او په دې شرط شراکت صحيح دی چي ټول به د ثواب نيت لري، نو که يو په دغه خلکو کي د غوښو نيت ولري نو د ټولو اختری يا شکريه نه صحيح کيږي او په دې شرط چي د يوه حصه به هم تر اومه کمه نه وي، که کمه وي نو بيا د ټولو شريکانو اختری يا شکريه نه صحيح کيږي.

---

(۱) يجب باجماع العلماء على القارن والمتمتع ان يذبح هدايا. الموسوعة الفقهية: ج۱۷ ص۴۳ / اللباب: ص ۲۹۰ / البدائع: ج۲ص۳۶۱.

ثم ذبح ان شاء لان المفرد لايجب عليه دم بل يستحب له.

شرح النقاية: ج۲ ص۲۶۳ / الحاوي القدسي: ج۱ ص۳۶۲.

او تر جمرة العقبة (غټ شيطان) ويشتلو مخته د شکريه حلالول جائز نه دي، که يو سړي د اختر په ورځ شيطان ويشتل و ځنډول، په شپه کي يې وويشتی نو شکريه دي هم تر هغه وخته پوري و ځنډوي.(۱)

د اختر په ورځ د ذوالحجې په لسم تاريخ شکريه کول ضروري نه ده ، د شکريې لپاره درې ورځې مقرري سوي دي د ذوالحجې لسم ، يوولسم او دوولسم تر لمر لوېدو پوري، په شپه او ورځ چي وغواړي شکريه حلالولی سي يعني د اختر په درو ورځو او دوو شپو کي حلالول ؛يې واجب دي او تر دغه له مخه نه دي روا او وروسته روا دي؛ خو دم د تاخير پر لازميږي.(۲)

د شکريې حلالول د حرم د باندي نه صحيح کيږي يعني شکريې او دم دواړو ته د حرم ځمکه شرط ده، په منٰی کي حلالول ضروري نه دي.

---

(۱) التاتارخانية: ج۲ ص۲۳۸ / الهندية: ج۱ ص۲۶۱ / مجمع الانهر: ج۴ ص ۱۶۸ / الهندية: ج۵ ص ۱۳۰٤: فتح القدير: ج۸ ص ۴۲۹ وص ۴۳۵.

(۲) الدر مع الشامي: ج۲ ص ۲۷۱ / الفقه على المذاهب الاربعة: ج۱ص۶۲۷.

الهندية: ج۱ ص۲۶۱.

دحرم دحدودو څخه یې دباندې حلالول جائز نه دي دمکې شریفې پرته په ټول نړۍ کې صحت نه لري، نو باید ډېر احتیاط وکړئ، چې فرض او واجب در څخه خراب نسي.(۱)

دشکریه حلالول تر شیطان ویشتلو وروسته او تر سرخریلو مخکې دقارن اومتمتع لپاره واجب ده، که چیرې هغوی تر شکریې کولو مخکې دسر وریښتان وخرییل یا کوچني کړل نو دم پر لازمیږې په دې کې باید له ډېر احتیاط څخه کار واخلي.(۲)

که قارن یا متمتع دشکریې پسه داختري په نیت حلال کړي،او پردغه سړي اختری هم واجب وو، همدغه پسه یې د اختري سو او که مسکین یا مسافر وو دغه پسه یې خیرات سو، او دحج قران یاتمتع دشکریې په نیت به بل پسه حلالوي او که تر دغه دوهم وار شکریه حلالولو مخکې سروخریې یا کوچنی کړي، نو ددغه په وجه دم هم پر لازمیږي او شکریه حلالول هم پر لازم دي. (۳)

---

(۱) اللباب مع الشرح: ص۲۹۰ / الموسوعة الفقهية: ج ٤٢ ص ٢٥١ / مجامع المناسک: ص ۳۱۷.

(۲) الفقه الحنفي في ثوبه الجديد: ج ۱ ص ٤٩٤ / الدر مع الشامي: ج ۲ ص ۲۲٦.

(۳) التبيين: ج ۲ ص۳٥۱ / مجامع المناسک: ص۵۷۲ / البحر: ج ۲ ص ٦٤٨.

که یو څوک د شکریې حلالولو لپاره بل څوک وکیل کړي او هغه وکیل بیا د ده بې اجازې بل سړی وکیل کړي نو صحیح دی پروا نه کوي، که یو کس بل چاته د خپل شکریې د حلالولو وکالت ورکړي؛ خو هغه وکیل دغه شکریه د خپل ځان په نیت حلاله کړي دغه شکریه د دغه سړي صحیح ده او د وکیل نه ده.(۱)

د شکریې د حلالو په وخت کي دغه الفاظ(بسم الله و الله اکبر ) یا (بسم الله الرحمن الرحیم ) یا په بله طریقه باندي د الله ذکر کول د حلالوونکي لپاره ویل مستحب دي، که په هېره باندي پاته سي او یا حلالوونکی ګونګی وي نو پروا نه کوي او که یې په قصد باندې پرېږدي نو بیا د دغه حلال سوي شي خوراک نه دی روا او دغه شکریه نه بلل کیږي، بله شکریه به حلالوي او د حلالوونکي ما سېوا د بل چا ویل او نه ویل هیڅ اعتبار نه لري.(۲)

---

(۱) الشامي: ج۲ ص۱۲ / البحر: ج۲ص۳۷۱ / خانية على هامش الهندية: ج۳ص ۳۵۵ / مجمع الضمانات: ص۱۷.

(۲) و المستحب ان يقول: بسم الله و الله اكبر،و لو قال: بسم الله الرحمن الرحيم فهو حسن غنية الناسک: ص ۳۶۲ / الموسوعة الفقهية: ج۲۱وص ۱۸۹ / البحر: ج ۸ ص۳۰۵وص ۳۰۸.

وتشترط التسمية من الذابح حال الذبح ، الدر مع الشامي: ج ۵ ص۲۱۲ / البدائع : ج۴ ص۱۷۰.

که قارن یا متمتع د شکریې د رانیولو قدرت نه درلودی نو بیا دي لس(۱۰) روژې و نیسي، درې (۳) روژې دي د ذو الحجې د لسم تاریخ څخه مخکې ونیسي خو افضل دا دی چې د لوی اختر د ماشتې په (۷، ۸، ۹) ورځ یې ونیسي، پاته (۷) روژې به دحج تر افعالو او د تشریق تر ورځو وروسته ونیسي او کورته تر راتلو وروسته افضل دي، که یې بل ځای ونیسي هم روا دي، د دغه روژو پرله پسې نیول لازم نه دي او د دغه لسو(۱۰) روژو نیت به د شپې څخه کوي چې د قران یا د تمتع روژه نیسم که داسې نیت ونه کړي روژه د شکر یې لپاره نه صحیح کیږي.(۱)

د شکریې د حیوان د غوښو صدقه کول لازم نه دي، خپله یې هم خوړل مستحب دي او د نذر او د دم د حیوان څخه خوراک نسي کولای.(۲)

---

(۱) اللباب: ص۲۹۱وص ۲۹۵ / الموسوعة الفقهية: ج۴ ص۱۲ / البدائع: ج۲ص۳۸۶ / غنية الناسک: ص۲۰۹/ مجامع المناسک: ص۳۲۳ / الشامي: ج۲ ص۲۰۹ / البحر: ج۲ ص۴۵۷ / الهندية: ج۱ ص۲۳۹.

(۲) غنية الناسک: ص۲۰۶ / اللباب مع الشرح: ۲۹۰ / الشامي : ج۲ ص۲۰۹.

# د طواف زيارت مسائل

کله چي د جمرة العقبة (غټ ) شيطان د ويشتلو شکريې او سر خرېيلو يا کوچني کولو څخه فارغ سي بيا به د بيت الله شريفي طواف وکړي، طواف زيارت په اتفاق سره رکن او فرض دی، همدغه طواف ته طواف افاضه طواف حج او فرضي طواف هم وايي، که چيري طواف زيارت تر پورتنيو درو (۳)اعمالو مخکي اداء سي فرض يې اداء کيږي خو د سنت خلاف کار دی.(۱)

طواف زيارت د اختر په اوله ورځ يا شپه کي افضل دی، بيا په دوهمه ورځ يا شپه بيا دريمې ورځي د مازديګر تر لمر لوېدو پوري يې وخت دی، که د دريمي ورځي تر لمر لوېدو مخته يې اداء نه کړي، ورڅخه وځنډيږي طواف زيارت يې صحيح دی خو د تاخير دم (پسه ) پر لا زم دی يعني طواف زيارت اداء کول د اختر په درو (۳) ورځو او دوو (۲) شپو کي واجب دي که څوک طواف زيارت د مريضي په وجه د اختر تر درو (۳)

---

(۱) و آما طواف الافاضة او الزيارة فهو ركن باتفاق الفقهاء لايتم الحج الابه؛ لقول الله عز و جل: "وَليطَوّفوا بِالبَيتِ العَتَيقِ" سورة الحج:۲۹ / الفقه الاسلامي و آدلته: ج۳ ص۲۲۰۵ البدائع:ج۲ص۳۰۷ لباب المناسک: ص۱۷۵.

ورځو و ځنډوي شي باندي نسته.(۱)

د طواف زیارت څلور(۴) شوطونه فرض دي او درې (۳) واجب دي، د طواف زیارت د صحت اول وخت هغه وخت دی چي د لسم د اختر د سهار دوهمي سپېدې را پورته سي تر دغه د مخه نه دی جائز او نه صحیح کیږي.(۲)

طواف زیارت د حج رکن دی، په هیڅ حالت کي نه فوتیږي، اخیر وخت یې پای نه لري، هرڅو کلونه وروسته چي یې اداء کړي صحت لري؛ لیکن واجب کېدل یې د اختر په ورځو یا شپو کي د امام صاحب پرمذهب بلکي

په اجماع سره د علماوو او که یو سړی طواف زیارت په یو سبب داسبابو

اداء نه کړي د خپلو حلالو ښځو سره نژدېکت ، مچول او نور داسي اعمال

---

(۱) والافضل هو الطواف فی اول ایام النحر. البدائع: ج۲ ص۳۱۵ / البحر الرائق: ج ۲ ص۶۰۸.

و لکن یجب فعله فی ایام النحر ای و لیالها عند الامام. لباب المناسک:ص ۲۵۷وص ۳۶۸وص ۳۹۷ / الشامي: ج۲ ص۱۹۹وص۲۲۷ / الموسوعة الفقهیة: ج۱۷ص۵۲ / اعلاء السنن: ج۷ ص۳۱۶۰.

(۲) والفرض منه اربعة اشواط و ما زاد فواجب. لباب المناسک: ص۲۵۶ / البحر الرائق: ج۲ ص ۶۰۸ الدر المختار مع الشامي: ج ۲ ص۱۹۸ / البدائع :ج۲ص۳۱۴ / فتح القدیر: ج۲ص ۳۸۹.

نسي کولای او ورته روا نه دي؛ ځکه دغه سړی د ښځو په حق کي محرم بلل کیږي او همدغه شان دغه ښځه د خپل خاوند په حق کي محرمه بلل کیږي، د طواف کولو تر وخته پوري ټول ورته حرام دي، که څه هم ډېر کلونه تېر سي او د طواف څخه وروسته روا کیږي.(۱)

چي هرکله محرم د اختر په روځ د شیطان ویشتلو او شکریه حلالولو او د سر خرېیلو څخه فارغ سي نو افضل دا ده چي په دغه اوله ورځ باندي طواف زیارت وکړي نو که دغه سړي تر اختر د مخه له طواف قدوم سره د صفا او مروا سعی کړې وي نو په دغه طواف کي به رمل (د اوږو ښورول) نه کوي او وروسته ترطواف زیارت به سعی نه کوي او که یې د مخه تر طواف زیارت د صفا او مروا سعی نه وي کړې نو د دغه طواف په درې (۳) اولو شوطونو کي به رمل وکړي خو اوږه لوڅول نسته او د طواف زیارت تر دوو رکعتو لمانځه وروسته به د صفا او مروا سعي وکړي.(۲)

---

(۱) الشامي: ج۲ص۱۹۹ / الهندية: ج۱ص۲۳۲ / غنية الناسک: ص۱۷۷.

(۲) اللباب مع الشرح : ص۲۵۶ / غنية الناسک: ص۱۷۶ / الشامي: ج۲ ص ۱۹۸ / الهداية مع الفتح : ج۲ ص ۳۸۸.

طواف زیارت په احرام او کالو دواړو کي کیږي، که طواف زیارت تر شکریې حلالولو او سرخرېیلو مخکي کوي نو په احرام کي به یې کوي اوکه طواف زیارت تر شکریې حلالولو او سرخرېیلو وروسته کوي نو په کالو کي به یې وکړي او چي طواف زیارت تر سرخرېیلو مخکي وکړي هیڅ شی نه دی ورته حلال نه ښځه او نه د احرام نور منع کارونه.(۱).

که طواف زیارت یا نورطوافونه – که فرضي وي که نفلي- په ناپاکه جامه یا ناپاک بدن باندي وکړي او دغه مرداري تر درهم زیاته وي نو مکروه کار دی؛ ځکه هغه سنت پاته سو چي د جامې او بدن پاکوالی دی د ظاهري مرداري په وجه پر دغه سړي باندې دم او صدقه یو لا هم نه لازمیږي .(۲).

که د اختر په روځوکي طواف زیارت د نفلي طواف په نیت یا په هر نیت باندي چي وکړي د طواف زیارت لپاره کار کوي.(۳)

---

(۱) سرکار دوعالم صلی الله علیه وسلم کا طریقه حج و عمره: ص۱۴۱۱ البحر الرائق: ج۲ص۱۶۰۹ لباب المناسک: ص۲۵۴ / الهندیة: ج۱ ص۲۳۲.

.(۲) لباب المناسک: ص۳۹۲ / الشامي: ج۲ ص۱۶۲ / البحرالرائق: ج۳ص۳۲.

(۳) لوکان ای طوافه فی یوم النحر و نوی نفلا او وداعاً او اطلقه وقع للزیارة لباب المناسک: ص۱۶۱ / البدائع : ج۲ ص۳۰۸ / الهندیة: ج۱ص۲۳۶.

که یو سړی طواف زیارت پر پښو ونه کړي؛ بلکي پرخکېدو یا د بل پر شا یا په سپرتیا سره وکړي که دعذر په وجه وي نو هیڅ شی نه لازمیږي او که بې له عذره څخه وي نو د طواف راګرځول پر واجب دي اوکه یې نه را وګرځوي دم پر لازم دی.(۱)

که طواف زیارت ټول یا ډېر شوطونه په بې اودسي سره وکړي دم پر لازم دي او را ګرځول یې مستحب دي، دغه طواف زیارت چي په بې اودسې سره یې کړی د ی که یې دوهم وار په پاکي سره د اختر په ورځو کي را وګرځوي یا وروسته هغه بیا له هغه دم څخه خلاصیږي او د طواف زیارت د ځنډېدلو په وجه دلته شی نه لازمیږي، نه دم نه صدقه.(۲)

---

(۱) غنیة الناسک: ص۱۱٤ / لباب المناسک: ص۱٦۸.

(۲) و لو طاف للزیارة کله او اکثره محدثا فعلیه شاة و علیه الاعادة استحبابا. لباب المناسک: ص ۳۸ غنیة الناسک: ص۲۷۲

و قید بذلک لا نه لو کان طاف محدثا و اعاده سقط عنه الدم سواء اعاده فی ایام النحر او بعدها، ولا شیء علیه للتاخیر.

منحة الخالق علی البحر: ج۳ ص۳۳ / الشامي: ج۲ ص۲۲۲.

که طواف زیارت ترڅلورو کم یو یا دوه یا درې شوطونه په بې اودسي سره وکړي که یې بېرته نه را وګرځوي نو د هر شوط لپاره نیمه کاسه د غنمو صدقه پر واجب دی.(۱)

که د طواف زیارت ټول یا ډېر شوطونه د جنابت یا حیض یا نفاس په حالت کي وکړي نو دا پر لازمه ده چي دغه طواف بېرته دپاکۍ په حالت کې را وګرځوي، که دغه طواف بېرته نه را وګرځوي بدنة (اوښ یا غویی) پر لازمه ده او په دغه طواف سره خپله ښځه ورته حلالیږي او په دغه طریقه سره طواف کول ګناه ده، که د طواف زیارت تر څلورو کم شوطونه د جنابت یا حیض یا نفاس په حالت کي وکړي که یې بېرته نه را و ګرځوي دم پر لازم دی، که یې را وګرځوي بیا د هرشوط لپاره نیمه کاسه د غنمو صدقه پر لازمه ده.(۲)

---

(۱) البحر الرائق: ج۳ ص۳۲ / الشامي: ج۲ ص۲۲۲ / غنیة الناسک: ص۲۷۲.

(۲). غنیة الناسک: ص۲۷۲ / لباب المناسک: ص۳۸۱ / الدر المختار علی هامش الشامي: ج۲ ص ۲۲۲ / البحر الرائق :ج۳ ص۳۲.

که پر محرم اوښه لازمه سي د دغه اوښي پر ځای اوه پسونه حلالول کار نه کوي.(۱)

که يو چا ته د طواف زيارت په شوطونو کي شک پيدا سي هغه د شک شوطونه دي را وګرځوي او پر خپل غالب ګمان دي عمل نه کوي.(۲)

که محرم تر طواف زيارت مخکي او تر عرفات وروسته وفات سي که دغه محرم وصيت کړی وي چي په ماپسي حج پوره کړئ نو د طواف زيارت په وجه بدنة (اوښ يا غويی) لازمه ده او حج يې صحيح دی او د مزدلفې شريفي د درېدو او شيطانانو ويشتلو او د صفا او مروا د سعی په وجه شی نسته.(۳)

---

(۱) فتاوىٰ الاسعدية: ج۱ ص ۴۸ / فتاوی رحيميه : ج ۸ ص۹۵

(۲) و لو شک فی عدد الاشواط فی طواف الرکن اعاده و لايبنی علی غالب ظنه بخلاف الصلوة.

الشامي: ج۲ ص۱۸۲ / الموسوعة الفقهية: ج۲۹ ص۱۲۵ / لباب المناسک: ص۱۸۴ / غنية الناسک: ص۱۰۵.

(۳) ولاشئ لغير طواف الزيارت من الوقوف بمزدلفة ورمي الجمار والسعي لان واجبات الحج تسقط بالعذر، غنية الناسک: ص۱۷۸/ منحة الخالق على البحر: ج۲ ص ۶۰۸ / لباب المناسک ص ۲۵۸.

تر طواف زيارت وروسته بايد له مکې شريفي څخه د منٰى شريفي پر لور روان سي او سنت طريقه دا ده چې د شيطانانو د ويشتلو شپې ټولي په منٰى شريفه کي تېري کړل سي، په منٰى کي دي خپل د اوسېدلو ځای ته ځان ورسوي، په مکه شريفه کي دي يې نه تېروي او نه پر لاري بل ځای او که يې تېري کړې دغه عمل مکروه دی؛ خو دم يا نور څه نه پر واجبېږي او د منٰى په مسجد خيف شريف کي په جماعت سره بايد لمونځونه وکړي په دغه مسجد شريف کې اويا (٧٠) تنو انبياوو او رسول الله صلی الله عليه وسلم لمونځونه کړي دي، زموږ علماء کرامو هم دلمونځو توصيه کړې ده نوکوښښ بايدوسي چي په دغه مسجد خيف کي لمونځ وکړل سي.(١)

---

(١) مناسک الملا علي القاري: ص١٩٦.

## د طواف وداع (د رخصتي د طواف) مسائل

طواف وداع چي طواف صدر هم ورته وايي(د خدای په امانۍ طواف) پر هغه چا واجب دی چي د میقات څخه د باندي اوسیږي ، د ا د حج اخیرنی طواف دی، چي له درو قسمو څخه هر قسم حج چي وي (مفرد، تمتع قارن) باندي واجب دی، د دې طواف همداسي طریقه ده کومه چي د نفلي طواف طریقه ده، هغه طریقه دا ده چي لومړی به دطواف نیت وکړي، بیا به د حجر اسود مسه یا استلام په اشاره وکړي، پر کعبه شریفه باندي به اوه شوطونه طواف وکړي، تر هغه ورسته به پر ملتزم دعاء وکړي، بیا به مقام ابراهیم ته راسي، د طواف دوه رکعته واجب لمونځ به اداء کړي، بیا به زم زم اوبه وچیښي، دعاء به وکړي، دا د نفلي طواف طریقه ده، په نفلي طواف او په طواف وداع کي نه احرام سته نه اضطباع (راسته اوږه لوڅول)، نه رمل (اوږې ښورول) په کښي سته،او نه سعی(د صفا او مروا په مابین کې تلګ را تلګ)، د دغه طریقې مطابق باید طواف وکړي، کله چي وطن ته د کعبې شریفي څخه د روانېدو اراده وکړي نو لومړی دي طواف وداع اداء کړي، بیا دي دوه روکعته د طواف لمونځ وکړي، وروسته دي د زم زم اوبه ښه ډېري و چیښي ا ویو څه دي پر سر مخ او بدن باندي هم

واچوي، بیا دي ملتزم شریف ته راسي، د کعبې شریفې پوښ به په راسته لاس ونیسي او د کعبې شریفي د دېوال سره به خپله سینه اوراسته بارخو ولګوي، ډېره عاجزي به وکړي او د ملتزم په مقام باندي دي ښه دعاوي وکړي، د خپلو ګناهونو بخښنه دي د الله تعالیٰ جل جلاله څخه وغواړي او خپل مور او پلار، اولاد او هغه چاته دعاوي وکړئ چې ستاسو څه یې د دعاء طلب کړی وي او د ټولو مسلمانانو په حق کي دي دعاوي وکړي، یا الله دغه حاضري مو اخیري حاضري مه ګرځوه، آمین یارب العالمین.(١)

---

(١) اما الاول فطواف الصدر واجب عندنا. البدائع: ج٢ ص٣٣٢ / التاتارخانية: ص١٨٢ / الموسوعة الفقهية: ج ٢٩ ص١٢٢.

و هو واجب على الحاج الافاقى. الفقه الحنفي فى ثوبه الجديد: ج١ ص٤٩٧ / شرح النقاية للقاري: ج ٢ ص٢٦٩ / وهو واجب على كل حاج افاق مفرد ،او قارن، او متمتع الخ غنية الناسک: ص١٩٠ / الشامي: ج٢ ص٢٠٢ / لباب المناسک: ص٢٧٩.

و اذا اراد السفر من مكة دخل المسجد فبدا بالحجر الا سود وطاف للصدر سبعاً بلا رمل، و سعى الخ.

غنية الناسک: ص١٩٢ / لباب المناسک: ص٢٨١ / الهندية: ج١ ص٢٣٥.

د طواف وداع اول وخت تر طواف زيارت وروسته دی، او اخير وخت نه لري ترڅو چي په كعبه شريفه كي وي كه يو كال وروسته يې وكړي هم اداء بلل كيږي قضاء نه دی.(۱)

طواف وداع د مكې مكرمې او د ميقات په حدودو كي چي د ننه اوسيږي پر هغو باندي مستحب دی او پر عمره وا لاباندي طواف وداع نسته او د يو چا څخه چي حج قضا سي طواف وداع نسته.(۲)

په طواف وداع كي رمل نسته او تر طواف وداع وروسته د صفا او مروا سعی نسته او تر طواف وداع وروسته پر شاتګ مستحب دی او كه نورو خلكو ته ضرر رسېدی بيا پر شاتګ نه دی روا.(۳)

---

(۱) البحر الرائق : ج۲ ص۶۱۴/ الشامي: ج۲ ص۲۰۲ / الهندية: ج۲ ص۲۳۴ / غنيةالناسک: ص۱۹۰.

(۲) وليس على فائت الحج طواف الصدر، المبسوط للسرخسي ج ٤ ص٢٠٠ / الهندية : ج١ ص٢٥٦

(۳) الدر المختار مع الشامي: ج۲ص۲۰۲ / غنية الناسک: ص۱۹۰ وليس على المعتمر طواف الصدر: .فتح القدير: ج۲ ص۳۹۷ / التاتارخانية: ج۲ ص ۱۷۲ وص۲۰۶ / الزيلعي: ج ۲ ص ۳۱۸.

ثم يدخل مكة و يطوف للصدر سبعة اشواط و لارمل فيه. الهندية : ج۱ ص۲۳۴ / الهندية مع الفتح: ج۲ ص۳۹۶.ثم اذا اراد السفر طاف للصدر اى للوداع سبعة اشواط بلا رمل و سعى. الدر المختارمع الشامي: ج۲ ص۲۰۲ / شرح النقاية: ج۲ ص۲۶۹ / البحر الرائق: ج۲ ص۶۱۵. / و انما استحسنهما مشائخنا تعظيماً للبيت المعظم. غنية الناسک: ص۱۹۳ / زبدة المناسک مع عمدة المناسک: ص۲۳۱ / الشامي: ج۲ ص۲۰۳ / البحر الرائق: ج۲ ص ۶۱۶.

که تر طواف زیارت وروسته هر نفلي طواف په نیت د طواف وکړي او طواف وداع و نه کړي نو دغه مخکنی طواف یې د طواف وداع پرځای دریږي.(۱)

که طواف وداع د جنابت یا حیض یا نفاس په حالت کي وکړي دم پر لا زم دي اوکه طواف وداع د بې اودسي په حالت کي وکړي د هرشوط په بدله کي نیمه کاسه د غنمو صدقه لا زمه ده، او که طواف وداع د جنابت په حال کي وسي را ګرځول یې واجب دي او که طواف وداع د بې اودسي په حال کي وسي را ګرځول یې مستحب دي.(۲)

---

(۱) فلو طاف بعد طواف الزيارت دون ان يعين شيئا او نوى تطوعا الخ .الفقه الاسلامي و آدلته: ج۳ ص۲۲۰۸ / لباب المناسک:ص۱۶۱ / البحرالرائق: ج۲ ص۶۱۴.

(۲) و لو طاف للصدر جنباً فعليه شاة.

غنية الناسک: ص۲۷۵ / البحرالرائق: ج۳ ص۳۴ / البدائع: ج۲ ص۳۳۳.

و ان طافه محدثاً فعليه لکل شوط صدقة.

غنية الناسک: ص۲۷۵ / لباب المناسک: ص۳۸۸ / الهندية: ج۱ ص۲٤٦ / الشامي: ج۲ ص۲۲۳.

هغه طواف وداع چي په جنابت يا په بې اودسي سره سوی وي كه يې دوهم وار په پاكي سره را وګرځوي د هغه دم او صدقې څخه خلاصيږي.(۱)

كه له يو چا څخه د هر ډول عذر په وجه طواف وداع پاته سي نه يې وكړي شی نسته باندي.(۲)

كه څوک له مكې شريفې څخه بې له طواف وداع روان سو چي تر ميقات نه وي تېر سوی پر ده باندي واجب ده چي بېرته مكې مكرمې ته را وګرځي او طواف وداع وكړي، و احرام ته ضرورت نسته،ترڅو چي تر ميقات نه وي تېر سوی او كه نه را وكړځېدی نو دم پر واجب دي او كه تر ميقات ووتی بيا اختيار لري كه دم وراستوي حلالوي يې ؛البته دابنه كار دی او كه چيري را وګرځېدی نو بيا د هغه دم څخه خلاصيږي ، خو د دغه را ګرځېدلو لپاره به چي تر ميقات تېرسوی وي يو وار دي د عمرې احرام

---

(۱) فان اعاد فلا شيء عليه فانه متى طاف اى طواف مع اى حدث الخ. الشامي: ج۲ ص۲۲۲ / غنية الناسک: ص۲۷۷.

(۲) و اما ترک شی من الواجبات بعذر فانه لاشيء فيه الخ.

الشامي: ج۲ ص۲۲۷ / لباب المناسک: ص ۳۶۸ وص ۳۹۷.

وتړي مکې مکرمې ته دي ولاړ سي ، بې له احرامه مکې شريفي ته ورتلل منع دي ، لومړی دي عمره وکړي، وروسته دي طواف وداع وکړي، بيا دي خپل ځای ته روان سي ، په دې ځنډېدو سره نه دم او نه صدقه واجبيږي.[۱]

که يو سړي طواف وداع وکړی او بيا بيرته يو څه وخت په کعبه شريفه کي پاته سو دوهم وار طواف وداع کول مستحب دی واجب نه دی.[۲]

---

[۱] فان جاوزه لم يجب الرجوع و يجب الدم و ان عاد فعليه الاحرام بعمرة او حج ، فان رجع بدا بطواف العمرة ، ثم بالصدر ، ولاشيء عليه بالتاخير الخ. لباب المناسک: ص۲۸۰ / غنية الناسک: ص ۲۷۵ مجامع المناسک:ص۳۰۳ / البدائع : ج۲ ص۳۳۴.

[۲] الدر المختار مع الشامي ج ۲ ص ۲۰۲ / زبدة المناسک مع عمدة المناسک ص ۲۲۷.

# د عبادت ډولونه

عبادت درې ډوله دی:

۱-مالي عبادت، لکه: زکات، سرسايه او داسي نور دا د وکيل په ذريعه اداء کېدای سي.

۲-بدني عبادت،لکه: لمونځ، روژه او جهاد؛ دا په هيڅ ډول د وکيل په ذريعه اداء کېدلای نسي.

۳-بدني او مالي عبادت، لکه: حج؛ دا د وکيل په ذريعه هلته اداء کېدلای سي چي پر چاحج فرض وي خو هغه يې پخپله پر اداء کولو قادر نه وي، که يې په خپله د اداء کولو طاقت ولري بيا يې د وکيل په ذريعه اداء کولی نسي.[۱]

---

(۱) معلم الحجاج: ص۲۵۹.

## د حج بدل(دبل لپاره حج کول) اړوند مسائل

که یو چا د بل لپاره حج کاوه نو د بل په حق کي افضل حج افراد ، یا حج قران دی او تمتع صحت نه لري، په دغه مسئله کي دعلماء کرامو تر مينځ اختلاف دی، بعض فقهاء کرام حج تمتع صحیح بولي او بعض فقهاء يې صحيح نه بولي، اوحضرت مولانا رشيد احمد صاحب (ګنګوهي) په زبدة المناسک کي د تمتع د حج عدم جواز غوره کړی دی، د محققينو رايه دا ده چي د تمتع حج کوونکي ته د حج بدل ليږونکي په اجازه هم تمتع جواز نه لري، د غنية الناسک مؤلف- چي د لباب او ملا علي قاري له شرحي څخه يې يو مختصر کتاب ليکلی دی- د تمتع حج يې جائز نه دی بللی نو ځکه په دې مسئله کي احتياط په کار دی، نو ښه خبره دا ده چي د حج ليږونکي په اجازه باندي د تمتع پرځای حج افراد يا حج قران وکړي چي هغه دواړه په اتفاق سره صحيح دي او تمتع دي نه کوي.(۱)

---

(۱) معلم الحجاج ص ۲٦٦ / غنية الناسک: ص ۳۴۵ / شرح اللباب : ص۵۰۴ / الشامي: ج۲ ص۲۶۰.

و لايخفى ان هذا سهو منه لان الميت لو امره بالتمتع فتمتع المامور صح.

ارشاد الساري: ص۵۰۳ / البحر: ج۳ ص ۱۱۵ / اللباب: ص۵۰۶.

څوک چې د بل پرځای فرضي يا نذري يا قضايې حج کوي فقهاوو د هغه لپاره شل (۲۰) شرطونه ليکلي دي، که دغه شرطونه ټول په کښبي موجود وي نو دغه حج بدل صحيح دی که بې له دې شرطونو يو څوک د چا لپاره حج وکړي حج يې نه دی اداء سوی:

۱-هغه څوک چي حج په بل کوي پر هغه سړي به حج فرض سوی وي.

۲-خپله به حج نسي کولا ی له حج کولو څخه به عاجز او معذور وي، که څوک په خپله حج کولا ی سي د ده له خوا د بل چا حج نه دی جايز.

۳-که د دغه سړي عذر د مرګ تر مهاله پوري وي نو د ده پر ځای بل څوک حج وکړي او وروسته که د چا عذر تر مرګ د مخه ليري سو او پخپله پر حج قدرت پيدا کړي نو خپله به حج بېرته کوي، مخکنی حج يې نفلي سو او که داسي عذر وي چي د ليري کېدو اميد يې نه وي، لکه: ړند ېدل فلج مرض اوس نوکه د دغه سړي پر ځای بل چا حج وکړی او د عادت پر خلاف باندي همدغه سړی جوړ سي نو پرده باندي د حج را ګرځول نه دي لازم.

۴-معذور به بل ته د خپل ځان لپاره د حج کولو اجازه کوي، که مړ کېدی او د حج وصيت يې وکړی بيا د وصي له خوا څخه حج کوونکي ته د حج

بدل حکم ضروري دی.

۵-د حج بدل ټول یا ډېر مصارف به د مړه یا معذور د مال څخه وي.

۶-د حج بدل لپاره به حج کوونکی د احرام تړلو پر مهال او یا تر احرام تړلو وروسته او د حج تر اعمالو کولو مخکې به د دغه معذور د حج نیت کوي او که یې د حج افعال شروع کړل بیا یې د آمر له خوا نیت وکړی د آمر لیږونکي فرض حج نه دی اداء سوی.

۷-حج کوونکی به یوائې د دغه معذور د حج په نیت احرام تړي، که یې د دوو تنو له خوا د حج احرام وتړی د یوه حج هم نه کیږي.

۸-د حج بدل کوونکی (مامور) به یوازې د یوه حج احرام تړي.

۹- که دغه معذور د حج لپاره معین شخص ټاکلی وو او داسې یې ویلي وه، دغه سړی به زما پر ځای حج کوي، بل څوک به یې نه کوي، نو په دغه صورت کې به خامخا دغه سړی د ده د طرف څخه حج کوي د بل چا حج نه صحیح کیږي
۱۰-هر چا ته چې د حج بدل امر وسي هغه به یې په خپله کوي او په بل چا به یې نه کوي.

۱۱-که د معذور دومره اندازه پیسې وي چې د اوسېدلو له وطن څخه حج په وسي نو د ده د وطن څخه به حج کوي اوکه پیسې لږ وي نو د کوم ځای څخه چې حج کېدای سي له هغه ځای څخه دي یو څوک واستوي.

۱۲-که پیسې وي نو دغه حاجي به پر پښو باندې حج ته نه ځي.

۱۳-دغه حج کوونکی به دغه سفر یوازې د دغه حج لپاره کوي چې آمر یې حکم ورته کړی دی، داسې به نه کوي چې اول د دغه ځای څخه د خپلې عمرې یا د دغه آمر بې له امر څخه د آمر پر ځای د عمرې په نیت احرام وتړي او بیا هلته تر عمرې وروسته د دغه آمر په نیت حج کوي او که یې وکړي نو بیا یې دغه حج د خپل ځان له طرف څخه دی او د آمر له طرفه څخه نه دی نو د آمر حج و نه سو.

۱۴-احرام به د آمر له میقات څخه تړي، که آمر تر میقات د باندې وي نو د غه حاجي به د میقات څخه احرام تړي او که آمر تر میقات د ننه وي نو بیا به دغه حاجي د حل څخه احرام تړي.

۱۵-چې آمر د کوم حج ورته ویلي وي هغه که حج افراد یا حج قران وي هغه به کوي مخالفت به یې نه کوي.

۱۶-حج به په جنایت باندې ، لکه: تر عرفات مخکي جماع کول؛ نه فاسدوي.

۱۷-د حج یو رکن به هم نه قضا کوي ، لکه: د عرفات تېرېدل.

۱۸-دغه معذور او حج کوونکی به دواړه مسلمانان وي .

۱۹-دواړه به عاقلان وي.

۲۰-حج کوونکی به د حج په افعالو باندي پوهیږي یعني د حج کوونکي بلوغ نه دی شرط.(۱)

نارینه د ښځې له طرفه او ښځه د نارینه له طرفه څخه حج بدل اداء کولی سي.(۲)

---

(۱) غنیة الناسک: ص۳۲۰ / معلم الحجاج: ص۲۸۷ / الشامي: ج ۲ ص ۲۵۸.

(۲) آپ کي مسائل: ج۴ ص ۷۵.

پر حج بدل والا باندې دا شرط دی چي د احرام تړلو په وخت کي به په زړه کي د هغه چا لپاره د حج نیت کوي د کوم چا لپاره چي حج کوي او په خوله باندې د نیت الفاظ ویل ضروري نه دي؛ البته افضل کار دی چي دغه الفاظ ووایي، یا الله جل جلاله زه د حج اراده لرم او د فلاني له خوا د حج احرام تړم، ته یې راته اسانه کړې او ته یې زما او د فلاني څخه قبول کړې.[1]

د حج بدل لپاره افضل هغه څوک دی چي د حج په احکامو باندي خبر وي، د حج په مسائلو ښه پوه وي او خپل فرضي حج یې کړی وي،او پر هغه چا چې خپل حج فرض وي او حج یې نه وي کړی د دغه سړي حج بدل کول د ده لپاره مکروه تحریمي دی او د هغه حج لیږونکي لپاره مکروه تنزیهي دی.[2]

---

(۱) الفقه الحنفي فی ثوبه الجدید: ج۱ ص۵۰۳ / غنیة الناسک: ص ۳۲۵.و یقول: اللهم اني ارید الحج فیسره لي و تقبله مني و من فلان. مجامع المناسک: ص۵۴۵.

(۲) غنیة الناسک: ص۳۳۸ / الشامي: ج۲ ص۲۶۲ / البحر: ج۳ ص ۱۲۳ / ارشاد الساري: ص۴۹۷.

د حنفي مسلک سره سم چا چې خپل حج نه وي کړی هغه دي د بل چا لپاره حج نه کوي، په دې صورت کي حج ته تلل په اتفاق سره مکروه تحريمي دی او پر چا چي حج نه وي فرض پر ده باندې د ځينو محققينو علماوو په نزد مکې مکرمې ته په رسېدلو سره حج فرض کيږي، نو احتياط دا دی چي دغسي څوک حج بدل ته نه واستول سي.(۱)

پر حج بدل باندي مزدوري اخيستل حرامه ده، اخيستل سوې مزدوري بېرته ورکول ضروري ده او د حج هرډول مصارف پر لېږونکي (آمر) باندي دي او که چيري د حج بدل له مصرف څخه پيسې پاته سوې نو حج کوونکي (مامور) ته په کار ده چي بېرته يې حج ليږونکي ته ورکړي مګر که يې ورته ويلي وي: چې هغه پاته پيسې ستا دي بيا ورکول نه غواړي يا د ثواب په نيت سره يې ور پرېښوولې نو جائزدي.(۲)

---

(۱) عمدة المناسک: ص۶۱۰ / ردالمحتار: ج۲ ص۲۳۱.

(۲) الدر المختار: ج۲ ص۶۰۰ / اللباب مع الشرح: ص۵۰۳ / مجامع المناسک: ص۵۶۳ / معلم الحجاج: ص۲۶۸.

حج بدل کوونکی به د شکریې او دم پسه په خپلو پیسو سره را نیسي پر حج لیږونکي باندې حق نه لري ، یوازې د احصار د پسه د پیسو حق پر لیږونکي باندي لري.

حج بدل کوونکی د حج لیږونکي د مال څخه یو چا ته میلمستیا یا قرض یا صدقه ورکولای سي که د حج لیږونکي په اجازه وي او بې له اجازې څخه یې نسي کولا ی. حج بدل کوونکی له خپلو انډیوالانو سره په ګډه او شراکت باندي خوراک کولا ی سي همدا ورته روا دی.(۱)

---

(۱) مجامع الناسک: ص۵۵۸ / البدائع: ج۲ ص۴۵۹ / المبسوط للسرخسي: ج۴ ص۱۷۳ / فتح القدير: ج۳ ص۶۹ / غنية الناسک: ص۳۴۲ / اللباب: ص۵۰۱ / الفتاوی الولوالجية: ج۱ ص ۲۸۲.

# د احصار بیان

احصار منع ته وايي او محصر هغه محرم ته ويل کيږي چي احرام وتړي ،تر احرام تړلو وروسته د تلګ ځخه منع سي او د احرام کار يې پای ته و نه رسيږي د دښمن له خوا يا د مرض له کبله ، يا د بندي کېدلو له امله يا د نورو عذرونو له وجهي.(۱)

هغه څوک چي حج پر فرض وي، وصيت يې نه وي کړی او بل څوک د ده پر ځای حج وکړي؛ اميد سته چي غاړي به يې په خلاصي سي امام ابوحنيفه رحمه الله فرمايي: زه اميد لرم چي لوی الله جل جلاله به د ده حج قبول کړي خو که مړي وصيت کړی وو بيا د وارث بې له اجازې د مړي فرض حج نه روا کيږي.(۲)

---

(۱) فالمحصر فی اللغة هو الممنوع ، والاحصار هو المنع ، وفي عرف الشرع هو اسم لمن احرم ثم منع عن المضي في موجب الاحرام ، سواء كان المنع من العدو او المرض او الحبس وغيرها الخ.

البدائع: ج۲ ص ۳۹۰ / الهندية: ج۱ ص۲۵۵ / التاتارخانية: ج۲ ص۲۱۴.

(۲) الفقه الحنفي فی ثوبه الجديد : ج۱ ص۵۰۲ / غنية الناسک: ص ۳۲۲ / مجامع المناسک: ص ۵۳۷.

تر نفلي حج کول حج بدل کول بهتر دي؛ ځکه د هغه فائده بل ته هم رسيږي، د يوه حج ثواب د هغه لپاره دی د اوو(۷) حجونو ثواب د ده لپاره دی، که څوک د خپل مور او پلار پر ځای حج بدل وکړي نو الله جل جلاله به دغه سړي ته د لسو حجونو ثواب ورکړي، دغه حج به له ده څخه،د ده له مور او پلار څخه قبول کړي او د الله جل جلاله له طرف څخه به دغه سړی له مور او پلار سره نيکي کوونکی وليکل سي.(۱)

د حج د هر عمل جلا ، جلا فضيلت او ثواب دی، لکه: په دې حديث شريف کي چي راغلي دي: رسول الله صلی الله عليه وسلم فرمايي: "هرکله چي له کوره څخه د حج په اراده ووځي چي ستا سپرلۍ کوم قدم ږدي يا يې پورته کوي الله تعالی جل جلاله ستا لپاره يوه نيکي ليکي او ستا يوه ګناه معاف کوي او د طواف د دوو رکعتونو ثواب داسي دی لکه يو عربي مريی چي آزاد کړې او د صفا او مروا ثواب دومره دی لکه اويا (۷۰)

مريان چي ازاد کړې او د عرفات دريدل چي دی الله تعالی جل جلا له پر

(۱) عن جابر انه عليه السلام قال: "من حج عن ابيه و امه فقد قضی عنه حجته و کان له فضل عشر حجج. الشامي: ج۲ ص۲۶۶ / ارشاد الساري: ص۴۹۳ / غنية الناسک: ص۳۳۷.

عرفات درېدونكي سره پر ملا ئكو باندي فخر كوي او وايي: زما بندګان خواره واره وربېښتان له ليري، ليري ځايونوڅخه راغلي، زما د جنت اميد كوي كه چيري ستاسي ګناه د ريګ د زرو، د باران د څاڅكو، يا د سمندر د ځګكو برابر وي بيا هم ما معاف كړي ياست او بخښنه مي در ته كړې ده ولاړسئ په داسي حال كي چي تاسو ته بخښنه سوې ده او چي دچا شفاعت او سفارش تاسو كړى دى هغه مو هم بخښلي دي"او بيا نبي كريم صلى الله عليه وسلم وويل: د شيطان د ويشتلو پر هره ډبره يوه غټه هلاكوونكې ګناه معافيږي او شكريه د الله تعالىٰ سره ذخيره ده.

د سر خرېيلو ثواب: د هر خرېيل سوي وېښته په بدله كي يوه نيكي ده يوه ګناه معافيږي او طواف زيارت په داسي حال كي كيږي چي پر تا باندي به هيڅ ګناه پاته نه وي او يوه ملا ئكه راځي ستا د اوږو په مابين كي خپل لاسونه ږدي او وايي: په را روان وخت كي له سره عمل كوه ، ستا تېر ګناهونه ټول و بخښل سول.(١)

---

(١) رواه الطبراني في الكبير و مسندالبزار ، واللفظ له و قال: و قد روى هذا الحديث من وجوه و لا نعلم له احسن من هذا الطريق.

الترغيب و الترهيب: ج٢ ص١١٠ / فضائل الحج مولانا زكريا: ص٣٠.

د مکې مکرمې په غرونو کې ځینې تاریخي سپېڅلي ځایونه سته چې د زیارت او لیدو وړ دي، مذهبي ارزښت لري، نو موږ په لنډه توګه دغه دوه (۲) غرونه در پېژنو:

## اول جبل ثور (غارثور)

دا هغه مبارک غار دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم او ابو بکر رضی الله تعالیٰ عنه چې کله له مکې مکرمې څخه د هجرت قصد وکړ او روان سول نو په دغه غار کې یې درې (۳) ورځې پناه اخستې وه او په دغه غار کې یې درې (۳) شپې وکړې او بیا مدینې منورې ته روان سول د غه غار د بیت الله شریفي په حدودو کې جنوب طرف ته پر (۴) کیلو متر لیري پروت دی او په جبل ثور کې واقع دی.دغه غار د مځکې د سطحې څخه (۴۵۸) متره لوړ دی، د دې غره په سر کې یو غار دی چې غار ثور ورته ویل کیږي، د دې غار لوړوالی د دننه له خوا څخه یومتراوپنځه ویشت سانتی دی (۱/۲۵) او طول او عرض یې درې نیم متره دی. دغه غار دوې (۲) لاري یا دروازې لري چې یوه یې لوېدیځ طرف کې زړه لار ده چې پر دغه باندي رسول الله صلی الله علیه وسلم داخل سوی دی او بله یې نوې لارد ختیځ

لورته ده. او په ټوله نړۍ کې له هغو شيانو څخه چې د حضرت محمد صلی الله عليه وسلم د جسد مبارک د لمس عزت يې تر لاسه کړی دی دوه شيان دي چې تر اوسه لا موجود دي: (۱) حجر اسود (۲) غار ثور. پر حجر اسود باندې د رسول الله صلی الله عله وسلم مبارک شونډان لګېدلي دي او د ثورغار تر اوسه لا هماغه ډبره ده چې د نبي کريم صلی الله عليه وسلم د جسد مبارک سره مښلېدلې ده.(۱)

## دوهم غار حراء

غار حراء چې په جبل النور سره مشهور دی د حرم په حدودو کې د مکې مکرمې شمال شرق لورته واقع دی، دغه غر د مسجد الحرام څخه څلور(۴) کيلو متره ليرې دی، د ا يو ډېر لوړ او جګ غر دی چې د ځمکې د سطحې څخه تقريباً (۲۸۱) متره لوړ دی ، د غره د څوکې څخه لږ لاندې غار حراء موقعيت لري. د دغه غار اوږد والی درې (۳) متره او بر يې تقريباً ۱/۵۰ يو نيم متره دی، لوړوالی يې د ميانه قد انسان په اندازه باندې دی، د غار د دروازې لار د شمال په طرف کې ده، په دغه حراء غار

. (۱) تاريخ مکة المکرمة: ص ۱۲۸.

کي حضرت رسول الله صلی الله علیه وسلم تر بعثت (نبوت) وړاندي د عبادت لپاره همدې غار ته ورتلی ، تر ټولو د مخه په همدې غار کي د الله تعالیٰ جل جلاله د قرآن کریم اولني آیتونه د جبرئیل امین علیه السلام په واسطه لومړی ځل هم په دغه غارمبارک کي پر نبي کریم صلی الله علیه وسلم نازل کړل.(۱)

## د مقبرة المعلی بیان

جنت المعلی د مکې معظمې یوه ستره مشهوره هدیره ده، دغه هدیره له جنت البقیع هدیرې پرته د نړۍ تر ټولو هدیرو افضله ده او زیارت یې مستحب دی. د مسجد حرام د شمال په طرف کي ختیځ لورته اووه سوه (۷۰۰) متره لیري په حجون منطقه کي موقعیت لري. د دغه هدیرې په مینځ کي سړک تېر سوی دی؛ ځکه نو د ا هدیره پر دوو برخو بېله سوې ده، په هغه زړه برخه کي چي زړه هدیره ورته وایي- ام المؤمنین حضرت خدیجه الکبریٰ رضی الله تعالیٰ عنها ، د رسول الله صلی الله علیه وسلم

نیکه عبدالمطلب، د هغه صلی الله علیه وسلم اکا ابو طالب، د رسول الله

(۱) مکة المکرمة تاریخ و معالم : ص ۱۰۶.

صلی الله علیه وسلم زامن : قاسم، طاهر او طیب، نور د غتې مرتبې وا لا اصحاب کرام رضی الله تعالیٰ عنهم، ډېر تابعین او بې شمېره اولیاء کرام په کي دفن دي، (زما سید مدني ورنیکه پیر طریقت او شریعت سید محمد یار آتش نفس رحمه الله تعالی د جنت المعلی په هغه زړه برخه کي خاورو ته سپارل سوی دی روح دې ښاد وي).

کله چې دغې هدیرې ته ځئ نو د صحابه کرامو، تابعینو او صلحاوو د زیارت نیت وکړئ، په دې طریقه سره به سلام ووایاست:

"اَلسَّلَامُ عَلَيْكُمْ دَارَ قَوْمٍ مُّؤْمِنِيْنَ ، وَاِنَّا اِنْ شَاءَاللّٰهُ تَعَالٰى بِكُمْ لَاحِقُوْنَ، وَنَسْأَلُ اللّٰهَ لَنَا وَلَكُمُ الْعَافِيَّةَ"

ژباړه: اې د دې کورمؤمنو اوسېدونکو! سلام پر تاسو! موږ هم تاسي ته په دې نژدې وخت کي راتلونکي یو او له لویه ښښتنه څخه د ځان او تاسو لپاره د عافیت دعاء کوو.

# عجوه خورما

د سعدبن وقاس رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: " څوک چې په کومه ورځ د سهار په وخت کې اوه(۷) دانې عجوه خرماوي وخوري په هغه ورځ زهر او جادو نقصان نسي ور رسولای.(۱)

له حضرت ابو هریره رضی الله تعالی عنه څخه روایت دی: رسول الله صلی الله علیه وسلم و فرمایل: عجوه خرما د جنت مېوه ده او په دې کي د زهرو څخه شفاء ده.(۲)

په بل حدیث شریف کي راځي چي نبي کریم صلی الله علیه وسلم وفرمایل: "ځوک چي سهار په نهاره (خالي نس) سره اوه (۷) دانې د مدینې منورې عجوه خرماوي وخوري تر ماښام پوري هیڅ شی نقصان نسي ور رسولای اوکه ماښام یې وخوري تر سهاره پوري هیڅ شی تاوان نسي ور رسولای.(۳)

---

(۱) رواه البخاري: رقم الحدیث: (۵۷۷۹) قال رسول اللهﷺ من اصطبح بسبع تمرات عجوة لم یضره ذالک الیوم سم ولاسحر .

(۲) رواه الترمذي: رقم الحدیث: (۲۰٦٦)

(۳) مسند احمد: رقم الحدیث: (۱٤٤۲)

# د عمرې او حج لپاره مکمل لارښود

دا کتاب پر دووحصو باندي مشتمل دی:

-په اوله حصه کي د عمرې احکام او طریقه په تفصل سره لیکل سوې ده.

-په دوهمه حصه کي د حج احکام او طریقه، فقهي مسائل، تاریخي مقامات په تفصیل سره لیکل سوي دي.

ښه خبره دا ده چې کله د عمرې یا د حج د سفر اراده وکړئ نو مخکي دا کتاب ښه په غور سره څو واره مطالعه کړئ، بیا چي کله هلته ورسیږئ نو د هر ځای احکام د فهرست په مرسته معلوم کړئ..

دټولو مسلمانانو ورونو څخه احترامانه هیله کیږي چي دهمدغه کتاب ښه حفاظت او ساتنه وکړي،چي په راتلونکي کي به ستاسو یا دیو بل مسلمان ورور په کار ورسي، نو دمهربانی له مخي ددې کتاب ښه ساتنه وکړئ

## خبرتیا

ما تر خپله وسه کوښښ کړی چي د ټولو مسائلو په اړه مکمل او مدلل معلومات دعمرې او حج بنیادي زده کړه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم زیارت او د مدینې منورې په اړه مکمل بیان وکړم.

البته ځیني کسان وایي چي سید نورالله ناقل دی، هو زه یې منم چي زه ناقل یم مجتهد نه یم، او نقل یا دمعلوماتو را ټولول عیب نه دی بلکي د دین مدار پر نقل دی د رسول الله صلی الله علیه وسلم د زمانې څخه بیا تر ننني ورځي پوري، هر څوک دي تکړه سي له کتابونو دي صحیح نقل ددین د پر مختګ په موخه وکړي در څود الله تعالی در ضاء سبب وګرځي.

**عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ: قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ: إِيَّاكُمْ وَالْحَسَدَ فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ.**(١)

ژباړه: د ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل: د حسد څخه ځانونه وساتئ، ځکه حسد نېکیاني داسي خوري لکه وچ لرګي چي اور خوري.

(١) رواه ابوداؤد:

قَالَ ابْنُ الْجَوْزِي رَحِمَهُ اللهِ عَلَيْهِ : مَنْ أَحَبَّ أَنْ لَّا يَنْقَطِعَ عَمَلُهُ بَعْدَ مَوْتِهِ فَلْيَنْشُرِ الْعِلْمَ.(۱)

ژباړه: ابن جوزي رحمه الله علیه وفرمايل: څوک چي دا خوښوي چي عمل يې تر مرګ وروسته هم قطعه او پرې نسي نو علم دي نشر او خپور کړي.

قَالَ ابْنُ الْمُبَارك رَحِمَهُ اللهِ عَلَيْهِ : لَا أَعْلَمُ بَعْدَ النَّبُوَّةِ دَرَجَةً أَفْضَلَ مِنْ بَثِّ الْعِلْمِ. (۲)

ژباړه: ابن مبارک رحمه الله علیه وفرمايل: د نبوت څخه را وروسته د علم تر نشرولو په بله غوره درجه نه يم خبر.

﴿لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ﴾

رَبَّنَا تَقَبَّلْ مِنَّا إِنَّکَ أَنْتَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ وَ تُبْ عَلَيْنَا إِنَّکَ أَنْتَ التَّوَّابُ الرَّحِيْمُ

وَ مَا تَوْفِيْقِيْ إِلَّا بِاللّٰهِ

اَللّٰهُمَّ صَلِّ عَلٰى مُحَمَّدٍ وَّ أَنْزَلَهُ الْمَقْعَدَ الْمُقَرَّبَ عِنْدَكَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

---

(۱) التذکرة: ص ۵۵

(۲) تهذيب الکمال: ۱۶ وص۲۰

**الحمدلله رب العالمین نحمده و نصلی علی رسول الکریم أما بعد!**

دغه تالیف خاصًا باحکام العمرة والحج یعني د عمرې او حج مکمل لارښود به مو ان شاءالله د استفادې وړ وي له یوه اړخه مختصر کوتاه او له بله اړخه عمده، مدلل او په تفصیلي ډول احکام او مسائل په اسانه او مروجه پښتو ژبه او د حنفي مذهب مطابق لیکل سوي دي الله جل جلاله! دي اخلاص را نصیب کړي او د ریا او آفاتو څخه دي مو الله جل جلاله! په خپل حفظ او امان کي وساتي آمین.

الحمدلله په پښتو ژبه دا د عمرې او حج مکمل لارښود په هکله زه خپلو پښتنو حنفي مذهبو وروڼو ته دا مشوره ورکوم چي دغه د عمرې او حج مکمل لارښود د عمرې او حج د اداء کولو په وخت کي د یو ښه ملګري په توګه له ځان سره ولري دده د مشکلاتو او ضرورت په وخت کي ډېر ښه مرسته ورسره کوي ښه لاره یې دا ده چي لومړی ټول لارښود یو څو ځلي مطالعه سي.

او د خطا او نسیان احتمال به پکښې وي د هر مطالعه کوونکي څخه زمونږ دا هیله ده چي مونږ ته دي د غلطۍ په هکله خبر راکړي او دا د هر

مسلمان دنده ده الله **جل جلاله** به ډېر ثواب ورکړي شو په آینده چاپ کي هغه غلطي اصلاح کړو او هغه کس چي په دغه مکمل لارښود کي یې تعاون کړی وي الله تعالی **جل جلاله**! دي په دنیا او آخرت کي اجر او ثواب د دغه صدقه جاریه ورکړي آمین!

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ وَسَلاَمٌ عَلَى الْمُرْسَلِيْنَ

وَالْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعَالَمِيْنَ.

پای

# ﴿دعمرې او حج د مکمل لارښود مراجع او ماخذونه﴾



| شماره | دکتاب نوم | شماره | دکتاب نوم |
|---|---|---|---|
| ١ | بخاري شريف | ١٨ | الموسوعة الفقهية (٤٥) جلد |
| ٢ | مسلم شريف | ١٩ | المحيط البر هاني |
| ٣ | الطحطاوي على مراقي الفلاح | ٢٠ | الترغيب و الترهيب |
| ۴ | الدر المختار على الشامي | ٢١ | إرشاد الساري |
| ۵ | الشامي | ٢٢ | أحسن الفتاوى |
| ۶ | الهندية | ٢٣ | فتاوى رحيميه |
| ٧ | فتح القدير | ٢۴ | فتاوى السعدية |
| ٨ | بدائع الصنائع | ٢۵ | البزازية على الهندية |
| ٩ | المبسوط للسرخسي | ٢۶ | الهداية مع فتح القدير |
| ١٠ | التاتارخانية | ٢٧ | البداية والنهاية |
| ١١ | الفقه على المذاهب الاربعة | ٢٨ | مرقات المفاتيح |
| ١٢ | الفقه الحنفي فى ثوبه الجديد | ٢٩ | مجامع المناسک |
| ١٣ | الفقه الاسلامي و أدلته | ٣٠ | غنية الناسک |
| ١۴ | الخانية على الهندية | ٣١ | شرح النقاية لملا على القاري |
| ١۵ | منحة الخالق على البحر | ٣٢ | الحاوي القدسي |
| ١۶ | وفاء الوفاء | ٣٣ | القواعد الفقهية |
| ١٧ | المبسوط للشيباني | ٣۴ | الزيلعي |

| شماره | د کتاب نوم | شماره | د کتاب نوم |
|---|---|---|---|
| ۳۵ | فتاوی النابلسي | ۴۲ | زبدة المناسک |
| ۳۶ | شرح اللباب | ۴۴ | سرکار دو عالم صلی الله علیه وسلم کا طریقه حج وعمره |
| ۳۷ | الفتاوی الولوالجية | ۴۵ | تاريخ مكة المكرمة (محمد الياس عبد الغني) |
| ۳۸ | معلم الحجاج (التهانوي کراچي) | ۴۶ | تاريخ مدينة المنورة (محمد الياس عبد الغني) |
| ۳۹ | فضائل الحج (مولانا زکریا رحمه الله) | ۴۷ | تاريخ مسجد نبوي شريف (محمد الياس) |
| ۴۰ | مسائل حج وعمره (مولانا محمد رفعت قاسمي) | ۴۸ | مكة المكرمة تاريخ ومعالم |
| ۴۱ | العلاج في امراض الحجاج (العبد الاحقر محمد سرور) | | المدينة المنورة تاريخ ومعالم |
| | منهاج السنن (حقانيه پشاور) | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |
| | | | |

# یادونه

ډېر دقدر وړ محترمو او معززو لو ستنکو! لله الحمد د الله تعالی په مرسته او کومک باندي دعمرې او حج مکمل لارښود پای ته ورسېدی او هیله لرم چي ستاسو به داستفادې وړ وګرځي او په راتلونکي کي إن شاء الله داسي پلان لرم چي د عمرې او حج همدغه مکمل لارښود دري (فارسي) ژبي ته هم وژباړم څرنګه چي د پښتو او دري تر مینځ هیڅ توپیر نسته دغه دواړي ژبي د یوې وني څانګي دي او دخپلو فارسي زبانو وروڼو دضرورياتو دپوره کولو لپاره داخدمت هم انجام کړم نوستاسو دټولو وروڼو څخه مي داغوښتنه ده چي ما حقیر په خصوصي دعاوو کي یاد کړئ چي الله تعالی جَلَّ جَلَالُهُ! د حج او عمرې همدغه مکمل لارښود په دري ژبه کي د ترتیبولو توفیق راکړي.

# د مساجدو د آبادولو فضیلت

الله تبارک وتعالی په خپل مقدس کتاب قرآن مجیدکي دمساجدو دجوړونکو او آباد کونکوکسانو فضیلت او ثواب ذکر کړیدی چي الله تعالی به ورته هدایت کوي الله تعالی فرمایي:

إِنَّمَا يَعْمُرُ مَسَاجِدَ اللهِ مَنْ آمَنَ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ وأَقَامَ الصَّلاةَ وَآتَى الزَّكَاةَ وَلَمْ يَخْشَ إِلاَّ اللهَ فَعَسَى أُوْلَئِكَ أَنْ يَّكُوْنُوْ مِنَ الْمُهتَدِيْنَ

رسول الله ﷺ دمساجدو د جوړولو او آبادولو په هکله زیات ترغیب صحابه کرامو ته ورکړیدی رسول الله ﷺ فرمایي:

څوک چي د الله تعالی درضا لپاره مسجد جوړ کړي الله تعالی به دده لپاره په جنت کي یو محل تیار کړي.

او الله تعالی مکة مکرمة او مدینة منورة غوره ځایونه بللي دي

دوی ته یې شرف او عزت ورکړیدی او په خاصه توګه حرمینو شریفینو ته یې لوړ مقام او منزلت ورکړیدی چي ټولو مسلمانانو ته دا څرګنده او معلومه ده.

نو له همدې امله داسلامي زمانې په اوږدو کې واکمنانو په خپله زمانه کې په حرمینو شریفینو کې ډول ډول پراخوالی تر سره کړه

لکه څرنګه چې لومړی پراخوالی خلفاء راشدینو تر سره کړ وروسته أُموییانو،بیاعباسینو،بیا عثمانیینو چې همدا دحرمینوشریفینو دخدمت سلسه اوس دآل سعود کورنۍ انجاموي، نوموړي کورنۍ په حرمینو شریفینوکې یې ډیر زیات خدمتونه کړیدي اود عمره کونکواوحجاجو لپاره یې زیات سهولتونه برابرکړیدي البته دوی چې کوم دحرمینو خدمتونه کړي دي داخدمتونه هغه چا ته معلومیږي کوم څوک چې په مکة مکرمة یا مدینة منورة کې او سیږي او  یاد عمرې یا حج په سفر باندې تللی وي الله تعالی دې د دوی ټول خدمتونه قبول کړي او الله تعالی دې د دوی څخه راضي سي او الله تعالی دې دوی ته اجر عظیم ورکړي چې دوی داسترخدمت انجاموي او الله تعالی دې دوی ته نور هم توفیق ورکړي چې دحرمینو شریفینو خدمت ته نوره هم توجه وکړي آمین!

## د دې کتاب د چاپ د لګښت په اړه يادونه:

څرنګه چي دا کتاب یوه غوره تحفه او ښه خیر جاري دی نویوښاغلي فاعل خير دالله تعالى درضا لپاره د دې کتاب د چاپولو او خپرولو لګښت پر خپله غاړه واخیست الله تعالی دي دفاعل خیر ښه نیت قبول کړي آمين!

**يادونه**: ټولو مسلمانانو ورونو ته خبر ورکول کيږي چي همدغه د عمرې اوحج مکمل لارښود دخرڅېدلو لپاره نه دی داهر عمره او حج کونکي ته مجاناً (مفت او بې پیسو) ورکول کيږي،لهذا د ټولو چاپي مطبعو او کتاب پلورنځیو څخه دا غوښتنه کيږي چي همدغه کتاب ونه پلوري.

قد تم الكتاب بعون الله تعالى و توفيقه

**إعداد و ترتيب:**

# سيّد نور الله آغا ﴿مدني﴾



خپروونکی سیّد محمودآغا (مدني)

**﴿يُوزع مجاناً ولا يُباع﴾**